۱۵ — ۶

د ۱۳۵۱ لمریز کال
دلیندی او مرغومی میاشت
نهمه او لسمه گڼه

پرله پسی گڼه ۱۴۵: ۱۴۶
د تاسیس کال ۱۳۳۹

Kandahar. Kabul
Vol.13, No.9, Qaws 1351
(November 1972)

Kandahar. Kabul
Vol.13, No.10, Jadi 1351
(December 1972)

# کندهار

اطلاعات و کلتور

میاشتنی خپرونه



معظم همایونی اعلیحضرت کندهار ته په خپل شاهانه وروستی سفر کی د کندهار په بین المللی هوایی ډگر کی تشریفاتی قطعه گوری (د اطلاعاتو او کلتور د رام عکاسی)

# معظم همایوني اعلیحضرت د کندهار او هلمند د ځینو پروژو د کتلو د پاره کندهار ته تشریف راوړ



معظم ټولواک کندهار ته د رسیدلو په رخت کې په بین المللي هوائي میدان کې پر یوه ډله کوچنیانو باندې چې شاهانه ذات ته ئې د ښاریانو په نمایندګۍ د ګلو ګیډۍ وړاندې کړې شاهانه مهرباني کوي. (د رام عکاسي)

د مرغومي ۲۵ :

معظم همایوني اعلیحضرت ان د ما پښین پر دوې بجې د ځینو ملګرو سره په کندهار تومي ساطنتي الوتکه کې د کندهار او هلمند د ځینو پروژو د کتلو د پاره د کندهار بین المللي هوائي ډګر ته راو رسیدل .

په دې سفر کې والاحضرت شهزاده شاه محمود او والاحضرت شهزاده محمد داود پښتونیار، د پلان وزیر دکتور سرابي، د فوائد عامې وزیر ښاغلي ذلمي خواز ک، د کرنې او اوبولګولو وزیر ښاغلي عبدالوکیل هم د ملوکانه ذات سره ملګري دي .

کله چې معظم ټولواک د الوتکې څخه راکښته سو ، الوتکې ته نژدې د ولسي جرګې د لومړي نایب عبدالاحد کرزي ، د کندهار والي ښاغلي زکریا ، د عسکري قواو قوماندان ډګر جنرال محمد سعید د هلمند، فراه، هرات او زابل د والیانو او د کندهار د سرپرست ښاغلي محمد صادق له خوا د شاهانه ذ او د سره ملګرو هر کلي وشو .

شهریاري ذات د احترام کارډ سلام و مانه، په دغه وخت ک ېوې ډلې کو چنیانو د کندهار ښاریانو په نمایندګۍ د ګلو ګیډ د ګران ټولواک حضور ته وړاند کړې .

# معظم همايوني اعليحضرت د خرقې مبارکې زيارت، د لوی احمدشاه بابا

## او ميرويس نيکه مقبروته تشريف يووړ

د مرغومي ۲۵:

معظم همايوني اعليحضرت په داسې حال کې چې ګران شهزادګان ورسره ملګري وو د ماز يګر په ۵ بجو او ديرشو دقيقو د خرقې مبارکې زيارت ته تشريف يووړ او د اسلام د ستر لارښوونکي حضرت محمد مصطفی (ص) روح ته ئې دعا وکړل.

وروسته شاهانه ذات د خرقې مبارکې د ګنبدې د ننه بيلې بيلې تزئيناتي برخې وکتلې او د هغې د تزئيناتو د بشپړېدو او د دروازې د ښکلې کيدو په هکله د کندهار والي ته هدايت ورفرمايه.

د غه دروازه به په سپينو زرو د سوادکارۍ په ډول ښکلې کيږي او په هغه کې به د سرو زرو ظاهرشاهي سکې لاجورد او د شا مقصود په ډبرو هم استعمال کاريږي.

همايوني ذات تر هغه وروسته د لوی احمدشاه بابا او ميرويس نيکه مقبروته تشريف يووړ او د تاريخ د هغو لويو ميړونو روح ته ئې دعا وکړل او د هغو د مقبرو په هکله ئې والي ښاغلي ذکربا او مربوطو مهندسانو ته لازم هدايات ورفرمايل. شاهانه ذات د شپې په ۶ بجو او لسو دقيقو شاهانه استوګنځي ته تشريف يووړ.

د بل خبر له مخې معظم همايوني اعليحضرت او د دوی ملګري د مرغومي په ۲۹ د سهار په ۱۱ بجو او ۵۸ دقيقو د کندهار څخه لښکرګاه ته ورسيدل.

معظم اعليحضرت د کندهار او هلمند په دوه لارکې د والي او د هلمند او ارغنداو د ناوې د ډ اختيا د رئيس انجنير مير محمدرضا د محکمې د رئيس مولوي محمد اصرار او په ولسي جرګه کې د هلمند د وکيلانو له خوا استقبال شول.

ملوکانه ذات لښکرګاه ته ورسيدو په وخت کې د تشريفاتي قطعې سلام ومانه او هغه ئې معاينه کړل.

وروسته تر هغه يوې ډلې کوچنيانو د لښکرګاه د ښاريانو په نمايندګۍ د ګلو ګيډۍ د همايوني ذات حضور ته وړاندې کړې او شاهانه ذات ته ئې هر کلی ووايه.

معظم ټولواک پر هغوی شاهانه مهرباني ورفرمايل. په دې وخت کې د لښکرګاه سرپرست ښاروالي ښاغلي محمد کريم بارک شاهانه حضور ته د هر کلي وينا عرض کړه. وروسته شهرياري ذات د هر کلي کوونکو صفونو ته تشريف يووړ او هر يوه سره ئې روغبړ وکړ.

شاهانه ذات په داسې حال کې چې د خلکو په تاوده هر کلي بدرقه کيدی شاهي استوګنځي ته تشريف يووړ.

د يو بل خبر له مخې معظم ټولواک له غرمې نه وروسته د شمالان نوی کانال او مارجې په ساحه کې د ارد و حيواني او زراعتي فارم وکوت.

معظم ټولواک د شمالان کانال څخه سر ترپايه چې ۴۲ کيلو متره ساحه ئې نيولې ده، د موټر په سورلۍ کتنه وکړه. د دغه کانال به بشپړېدو سره ۶۳ زره جريبه ځمکه تر اوبو لاندې راځي.

همدا رنګه همايوني اعليحضرت په مارجه کې حيواني فارم وکوت چې په هغه کې ۷۶۸ ډول ډول څاروي تر روزنې او نسل اخستلو لاندې نيول شوي دي.

د وروستي خبر له مخې معظم اعليحضرت او ورسره ملګري پرون (د مرغومي ۳۰) د غرمې پر ۱۲ بجو او ۴۵ دقيقو کندهار ته راورسيدل او له غرمې وروسته په دوو بجو په کندهار نومي سلطنتي الوتکه کې کابل ته ستانه شول.

او وروسته تر هغه معظم قوللواک د هر کلي کوونکو صفونو ته تشریف یووړ او هغو سره یې د لاس روغبړ وکړه د هر کلي کوونکي په صفونو کې د کندهار او زابل وکیلان او سناتوران عسکري او ملکي مامورین او د ښار معتبر حاضر وو

شاهانه ذات د هوايي میدان تر مراسمو وروسته د موټرو په سورلۍ شاهانه استوګنځي ته حرکت وفرمایه د باختر خبریال زیاتوي چې د ګران قوللواک د موکب د تېرېدو سره سم د واټ او پر دواړو خواوو په زرو کسانو د هر کلي نارې وهلې.

د یوبل خبر له مخې د مرغومي په ۲۷ ملوکانه ذات د کندهار د مرکزي دایرو ورئیسان او د پوهنې منسوبین شاهانه حضور ته ومنل او د کندهار سیلو او نوي عسکري قشله ئي وکتل.

چې زما سره ملګري وي د کندهار د وکیلانو او اوسېدونکو سره به په تماس کې سي او تر څو چې د حکومت په توان کې وي د مشکلاتو په لیرې کولو کې به پاملرنه وکړي.

د باختر اژانس نماینده زیاتوي چې معظم اعلیحضرت د



معظم همایوني اعلیحضرت د کندهار په هوايي میدان کې د سپین ږیرو او مخورو سره د روغبړ په حال کښې لیدل کېږي (د رام عکاسي)

شهرباري ذات او د هغه ملګري د قول اردو د قرارګاه په دروازه کې د کندهار د قول اردو ۲ د قوماندان او د شاهي اردو د جنرالانو له خوا استقبال شول.

وروسته د مرکز د دایرو د رئیسان او د پوهنې منسوبین په داسې حال کې چې والي ښاغلی سلطان عزیز ذکریا هم حاضر و د شاهانه ذات په حضور د مشرف شول په دې ترځ کې معظم قوللواک د تېرو دوو کلونو وچکالي د ګران هېواد د پاره یو لوی افت وباله او وئې فرمایل چې دغې پېښې د افغانستان خلک او حکومت ودې ته متوجه کړي دي چې د هغې د تاوان او جبران او د راتلونکو تاوانو په هکله تر ممکنې اندازې ګټور اقدامات وکړي.

شاهانه ذات وفرمایل: د فوايد عامې، کرنې او پولګونو او پلان وزیران

ما پښین پر ۲ بجو او ۱۵ د دقیقو په کوکران کې د سیلو ودانۍ وکتل شهرياري ذات د سیلو تر کتلو وروسته د کندهار نوي عسکري

قشلې ته تشریف یووړ او د هغې نقشه او ساحه یې ملاحظه او د هغې د معمورتیا څخه ئې د خوښۍ مراتب څرګند کړل.






# زموږ نوی حکومت

ګرانو لوستونکو ته خبر دی چې د ډاکټر عبدالظاهر د حکومت تر استعفی وروسته د شاهانه ذات له خوا ښاغلي محمد موسی شفیق ته چې په ځوانۍ کابینه کښې

د خارجه چارو وزیر و د نوي د حکومت جوړولو لارښوونه وشوه نو د اساسي قانون د (۸۹) مادې د حکم سره سم ښاغلي شفیق د قوس په ۲۲ نیټه د ولسي جرګې څخه اعتماد

رأیه واخسته او حکومت ئې په قانوني لحاظ منځ ته راغی.

نوی حکومت چې د ملي شورا تر راتلونکو انتخاباتو پورې به خپلو وظیفو ته دوام ورکوي د هیواد د ځینو

مشکلاتو د لیرې کولو د پاره چې اقتصادي پرابلمونه ئې په سر کښې دي کوښش کوي او لکه څرنګه چې په خپله کړنلاره کښې ئې چې د باور د رأی د اخستلو په

وخت کښې ئې د ولسي جرګې وکیلانو ته ولوستله او د رادیو افغانستان په څپو کښې خپره شوه فواید چې د نویو پروګرامونو او ګټورو فعالیتونو د لارې د هیواد

د هر اړخیز انکشاف او پرمختګ په لاره کښې چټکتیا او اصلاحي جنبش منځ ته راولي.

په دغه وخت کښې چې په هیواد کښې اوس درې ګوني

قوادي بیلې شوي او هر یوه خپلې وظیفې د خپل قانوني صلاحیت په چوکاټ کښې د دیموکراسي نظام لاندې په آزاده توګه پرمخ بیائي بیا هم د دغو درو قواؤ په منځ کښې پوره همکاري او اعتماد او په تیره بیا د حکومت

د مشرانو د نورو وظیفو د پوره تدبیر او سمه لارښوونه او د چارو په انتظام زموږ د هیواد ټولې چارې په ښه ډول پرمخ

بیائي او د دغو قواؤ د متجمعي کوښش او فعالیت زموږ هیواد د کامیابۍ او نیکمرغۍ پړاو ته خیژوي.

زموږ نوی حکومت تر ټولو د مخه خپل ارتباط د نورو دوو ګونو قواؤ په تیره بیا د ملي شورا سره مضبوط کړي او د ملت د نماینده ګانو او خلکو په ګډه همکاري خپلې درنې وظیفې د افغانستان د ستر پاچا تر لوړ قیادت لاندې خپلې وظیفې سرته ورسوي.

د ښاغلي شفیق حکومت په خپله کړنلاره کښې د قانون په ټینګولو سره وعده ورکړې ده او لکه څرنګه چې دده د حکومت هیڅ کار به د قانون د احکامو مخالف نه وي او بل هیڅوک ته به اجازه ورنه کړي چې هغوی د ځان په ګټه خلاف رفتاري وکړي او د قانون په ماتیدو سره ځان ته ګټه او هیوادوالو ته زیان ورسوي.

«پاته یې په دریم مخ کې»

د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

لیکونکي ډله

عبدالقدوس (نجیب)
احمد (راشد)
عبدالمنان (امین)

هیرمن ملاله (اڅکزۍ)
طباعتي همکار: حلمي (بارک)
اداره: د شهیدانو واټ
د ټیلفون نمبر: ۲۸۸۴

پښتو کونکی : فیض محمد وزیری

# دافغانستان دخلکو د تاریخ یوه ګوښه

## ازادی غوښتونکو مبارزو ته یوه لنډه کتنه د تاریخ په اوږدو کی

## د پښتنو او انګلیسانو تر لومړی جګړی پوری

> د افغانستان ازادی غوښتونکو خلکو تل د خپلی خاوری د ساتلو په غرض د پردیو اشغالګرانو سره لکه هخامنشیانو، یونانیانو، موریانو، ساسانیانو، مغولو، صفویانو او انګلیسانو سره خونړۍ جګړی کړیدی.

### د پښتنو ازادی غوښتونکی مبارزی د هخامنشیانو په مقابل کی:

تاریخ ددی خبری شاهد دی چې دافغانستان ازادی غوښتونکو خپلی مبارزی د لومړی ځل دپاره

د هخامنشیانو په مقابل کی شروع کړیدی. کوم وخت چې هخامنشیان لومړی ځل په افغانستان کی قدرت ته ورسیدل د اریانا پاچهی ته د سقوط سوی او د پخوا

پشان ئی لمن پراخه وه او هم تل په اریانا کی

لوی لوی قهرمانان را ولاړ سوی دی چې پر نورو هیوادو به ئی حکومت او امریت کاوو سر بیره پر هغه چی ۵ یا ۶

کاله ئی د (سیروس) او څو کاله ئی د (داریوش) او ٤ کاله ئی د یونانیانو د لوی قدرت سره سختی جګړی

وکړی مګر بیا هم هخامنشیانو ونه سو ای کولای چی پر دغه خاوره باندی خپل حکومت وکی.

د هخامنشیانو لومړی پاچا چی (سیروس) نومیدی

پر اریانا باندی ئی حمله وکړه مګر ناکامه شو او بیرته شاته ولاړی.

### په ۳۲٦ ق-م کال کی د سکندر لښکر کښی:

زموږ جنګجو په خلکو د سکندر د عسکرو په مقابل کی ډیر بې مې ساله او د لا وری سره ټینګه ودریدل او د پښتنو دغه مقاومت د سکندر په مقابل کی د افغانستان په

تاریخ کی ډیر اهمیت لری سکندر غوښتل چې د اریانا د شمالی شرقی لاری څخه ځان باکتریانی ته ورسوی او په هغه ځای کی د (بسوس) سره چې ځان ئی د اریانا پاچا

بللی و، حساب تصفیه کی نو په همدی سبب ئی د هرات څخه د باکتریانی خواته حرکت وکی نو وروسته تر ۳ یا ٤ ورځو دا ورمعلومه سوه چې (ساتی بارزانس) هم د

باختر د پاچا سره ملګری دی او په دغه وخت کی د اریانا خلک (د ساتی بارزانس) تر لاربښوونی لاندی د بیګانګانو په مقابل کی سخت تحریک سوی دی او پښتنو

په دغه وخت کی یونانی (انا کسیپ) سره ده د ملګرو مړ کی. کله چې (ساتی بارزانس) سکندر د هرات څخه لیری و لیدی نو په دی هڅه وو چې د سکندر په مقابل کی

د جنګ د پاره تیاری وکی او پدی لړه کی سو چې د سکندر د رابطه د یونانیانو او نورو هغو هیوادو سره پری کی کوم چې د سکندر مستعمری وی نو په دی وخت کی

سکندر خپلی موده یو لیک په لاس ډول سره اوشته کړی و (تراو سه پوری نه دا سی غښتلو خلکو سره نه وم مخامخ سوی لکه د اریانا جنګجو به او انګیالی خلک

«۲ مخ»

...چې د خپلې خاورې او هیواد د ساتلو دپاره تر خپلو سر وتېر دي او د هېچا زور نه پر دوی چلېږي .

سکندر د پاچوهانو کنې په برخو کې د پښتنو د سختو جګړو سره مخامخ سو چې په هغو جګړو کې سکندر دوه واره سخت زخمي سو چې دغه پېښه په حقیقت کې د افغانستان د خلکو دلاورې او مېړانه ښکاره کوي .

کوم وخت چې سکندر وغوښتل چې زمونږ هیواد ونیسي او پر هغه باندې حکومت وکړي نو په ټي هغه هیواد په وړ بره اصلي سره ونیوي مګر زمونږ د افغانستان وګړي ئې چې د سکندر په مقابل کې ټینګ ودریدل او د هغه سره ئې د ۳۳۰ څخه تر ۳۲۶ ق-م کاله پورې سختې جګړې وکړې پښتنو د غو ٤ کلو په جګړه کې سکندر ته سختي ماتي ورکړې او هغه ئې نا امیده د خپلې خاورې څخه وشړل .

## د موریا پاچهي

د موریا دولت د افغانستان د هندوکش په جنوبي سیمه کې یو موقتي دولت ؤ . که څه هم د موریا امپراطورۍ په هند کې تجزیه سوې وه خو تر هغه وروسته په هند کې

یوه واقعه ما بین النهرین ته راغلل چې د هغې یادونه د سیاسي، نظامي، مذهبي او صنعتي لحاظ پر اریانا باندې بې تأثیر نه وه او هغه دا و، چې په هند کې د یوې لوی او تاریخي امپراطورۍ مرکز په ځای چې د سکندر د جنګو د پاره ئې پخه زمینه برابره کړه .

او د هند تیت او پرک عناصر ئې سره یو ځای کړل او د پردیو په مقابل کې یو لاس کړل او یونانیان ئې د پنجاب څخه وشړل او دغه رنګه کندهار (د پېښور شرقي برخه

او د کابل او سنی دره) د (ارخند اپ سیمه) او د افغانستان عیني جنوبي برخې ئې هم د خپلې امپراطورۍ جزو ګڼلې که څه هم دغه حالت ډیره موده ی دوام و نکړ ی او ژر

د اریانا یو آزاد دولت ما بین النهرین ته داخلی او د موریا تر لاس ئې د اریانا د جنوبي شرقي سیمو څخه لنډ کړ .

د اریانا د آزاد دولت موسس چې (دیودو تس) نومیده په ۲۵۰ ق-م کې په باختر کې د آزادۍ اعلان وکړ

د هندوکش جنوبي برخې د دیو دوتس او دده د زوی

دوهم دیو دوتس په وخت کې د موریا نو تر لاس کې وی او دغه حالت د (او تیدموس) تر پاچهۍ پورې دوام وکړ د موریانو د کورنۍ وروستنی پاچا چې (سو فاګازنیس) نومېده د باختر د پاچا د پاچهۍ په اولو ورځو کې د کندهار

او د کابل د درې په غربي برخو کې اقتدار درلو دی مګر په دې وخت کې د باختر پاچا د هندوکش جنوبي برخو ته لښکر کشي وکړل د اریانا خلکو د خپلې ګوډې

په زور د موریا حکومت د کابل د درې څخه وشړې او هم ئې د هندوکش جنوبي برخې د باختر د پاچهۍ په قلمرو کې داخلې کړې او هغه برخې ئې هم تر خپلې اداري لاندې راوستلې .

وا یو تیدموس د باختر پاچا د خپل مرکز باختر څخه برګو له اریانا باندې حکومت کاوه د اریانا زړه ورو خلکو د خپلې خاورې د ساتلو دپاره د دوو لویو قدرتو

لکه یونان او هندوستان سره سختې جګړې وکړې او هغه ئې د خپل هیواد څخه وایستل او خپل هیواد ئې آزاد کړ بیا ساسانیانو پر افغانستان باندې حمله وکړه او څو عمر ئې حکومت پکښې وکړ مګر د کوشاني کیدارې

دولت د ساسانیانو سره په جګړه لاس پورې کړ کوچنی کوشانیانو د پاچا او خپل ملی مشر (کیدار) تر لارښوونې لاندې د خپلې خاورې د آزادولو د پاره د ساسانیانو سره

جګړې شروع کړې لی د کیداریانو د غو جګړو ونه یوازې دا چې ساسانیان ئې د اریانا څخه وایستل بلکه په غرب کې د ارمنستان تر بری برخې د ساساني دولت د لاسه څخه ولاړې او هغه مځکې چې په دوه میانو پورې ومهتې کوم وخت چې په

اریانا کې آزادی غوښتونکی مبارزي د ساسانیانو پر ضد شروع سوې نو په دغه وخت کې ساساني دولت ډیر وارخطا سو ددې د پاره چې یوازې د اریانا د خلکو

آزادی غوښتونکو جګړو ته متوجه سی او د هغو سره جګړې وکړي نو د دوه میانو سره ئې سوله وکړه او د هغو غوښتنې ئې ومنلې او دغه رنګه په ۳۷۸-۳۶۷ ق-م کې پښتنو خپلې مبارزې د ساساني پاچا دوهم (شاپور) په

مقابل کې شروع کړې چې د دغو مبارزو لمسوونکی کوشاني کیداریانو او د هغو د خوا څخه پر ساسانیانو باندې حملې شروع سوې په اومې ی جنګ کې د ساسانیانو عسکر مړه یا ټپیان سول او په دوهم جنګ کې (دوهم شاپور) د جګړې د میدان څخه وتښتی دی .

(پاته په ۳۱ مخ کې)



تهیه کوونکی زمان:«مروزی»

# د ویتنام د درد ناکې جګړې دوام

د امریکا او هانوی د دواړو خواوو خبرې کوونکو د تیرو څو ورځو په ترڅ کې داسې ښکاره کړه چې د ویتنام د جګړې د پای ته رسولو په لاره کې هر ډول هیلې درلودل یو سم کار نه بریښي او هغه ډول چې انتظار کېدی

چې د نوي عیسوي کال شروع به د ویتنام د جګړې د بندېدلو سره برابره وي، و نه سول.

د ویتنام د خبرو ناکامي له دې کبله د نړۍ د مطبوعاتو او سیاسي ډلو د حیرانتیا سبب ګرځېدلې وه چې وروسته دوی ته څرګنده سوه د سولې د خبرو په

وروستي ورځ هغه هم په هغه وخت کې چې د تیرې چهارشنبې دورې په وروستي ګړ بو کې د دې پر ځای چې وروستۍ موافقې ته سره ورسیږي او د سولې موافقتنامه لاسلیک سي، په دې وخت کې د هانوي د وا کمن نماینده

لید کټو له خوا اوی شرایط منځ ته راغله د بلې خوا بیا د جمهور رئیس نکسن مشاور کسینجر داسې وښودل چې موافقتنامه په سل کې ۹۹ تکمیل سوې ده نو څکه ئې و نه سوای کړای چې موافقتنامه لاسلیک سي نو هغه ؤ

چې د دواړو هیوادو هیئتو نه بیرته خپلو مرکزو ته ستانه سول.

په عین حال کې ویل کیده چې وروستي موافقې ته د نه رسیدو لوی اساسي علت پولې مسائل وه چې په

ویتنام کې د اور د بندېدو نه وروسته په وخت کې د اور بند د کنټرول د فعالیتو د چال چلند سره ارتباط درلودی خو د نړۍ د مطبوعاتو او سیاسي ډلو په اند دو ویتنام د سولې په خبرو کې د اډول مسئله په لومړۍ درجه کې ځای

لري، که د هانوي او واشنګټن خو اوو د سولې کولای چې د اور بند په وخت کې د ناظر ټولو فعالیتو د څرنګوالي په برخه کې یوې موافقې ته سره ورسیږي

خو د دغو هیئتو مربوطو هیوادو او یا په خپله د دغه هیئتو نو کولای سوای چې په دغه لار کې هر ډول خنډونه له منځه یوسي او کوښښ وکړي چې په ویتنام کې د جګړې د اور لمبې نور د دغه هیواد د خلکو ید بختی او ودنه نه کړي.

که څه هم اوس د دواړو خواوو د اموضوع داسې ښکاره کړې چې په دې مسئله کې د دوی ملامتي نه سته او د دې خبرو ناکامي هر څو د اخپل مقابل طرف د

چال چلند نتیجه بولي، په هر صورت اوس د دې موضوع څخه څرګندیږي چې د امریکا دولت د نکسن په دې وروستیو پیشنهاد و په ورواندې کولو سره د موافقتنامې د تړون نه بو دل چې د عقرب په ۹ نیټه لاسلیک سي

مګر داوار بیا لید کتو د موافقتنامې د لاسلیک کولو په وروستیو سا عتو کې بو ابست چې په هغه کې د نوو تعدیلاتو غوښتنه کیدله د کسینجر و منخ نه کښيښو د

د غو تعدیلاتو د سولې په پلان کې د پر تغیرات پیشبیني کول مګر کسینجر نه سوای کولای چې هغه و منې نو له دې سببه تو له هغه تماسو نه څخه اتریزا کومې هیلې چې په دغه لار کې را پیدا سوي وی بې نتیجې پاته سوې او د دواړو خواوو د دغې ناحیې څخه مأیوس سول.

اما د دغه ما بینه څخه یو ه نکته څرګنده او ښکاره کیږي، هغه دا چې د دواړو خواوو د اهیله لري چې د ویتنام جګړه پای ته ورسیږي د جګړې د مداخلې قواوي په دې نه دي بر یالي سوي

چې د سولې په برقرارولو کې یو بل ته ورتیر سي، که د دوی ترمنځ دا ډول احساس (هغه هم د جګړې د مداخلو قواوو په ټول قدرت) موجود وای نو د غه مساعد وخت د دې د لاسه نه ورتی.

په عین حال کې د دوی د دغه وروستي چال چلند څخه داسې ښکاري چې د دوا ړو خوا او و څخه هر یو ه

داکو ښېښ کاوه چې د دغو درو سټېو جریان تر څو ځنډه پخپله ګټه کار واخلي په تېره بیا په دغو دو سټېو د ډوکي د شمالي ویتنام اود ویتکانګ قواوو په جنوبي ویتنام

لاوس او کمبودیا کې خپل فشار ډېر زیات کړی اود خپلو قواوو پیاوړتیا په جنوبي ویتنام خصوصا په سیګون کې دا پېره ډېره قوي کړه چې په دغه هیواد کې د سیګون پر رژیم او د امریکا په متمرکزو قواوو باندې

د فشار راوړلو زیات قدرت لري او په عین وخت کې په لاوس او کمبودیا کې د دوی فعالیتونو داسې کار ته کړل چې د ښمن نه وېښتی چې د حوزې په عمومي ډول بانو کې د

ویتنام د خلکو اراده بې تأثیره کړه او شمالي ویتنام بحری محاصری ونه سوای کړای چې د دوی حملې د مقابل طرف پر مواضعو باندې محدودې کړي .

که څه هم په دغو ورځو کې چې د ویتنام د سولې خبرو جریان درلود دا ډول احساس موجود و چې هانوی او ویتکانګ غواړي د ویتنام په جګړه کې د ښمن پر مواضعو باندې زیات تر فشار لاندې راولي چې د

اوربند په وخت کې پر امتیازات ترلاسه کړي او د خپلو حملو پېره د ښمن په زړه وکې ژوندۍ وساتي . اما اوس معلومه سوه دغه حملې چې د سیګون په ښار و کړې د

جنوبي ویتنام او د مواضعو او د هغه د چېن د حوزې او د هېواد و ته متوجه وې د دې څخه د هانوی مقصد دا و چې د دوی خوا خپل موقف وساتي او د بلې خوا پر مواضع پخپل تصرف کې ولري او په عین حال کې د جنوبي ویتنام څخه د شمالي ویتنام د عسکرو د تللو موضوع هم د روستي موافقې ته ورسیدلې .

که چېرې د غسې موضوع حاته د حل لاره پیدا کړې وای نو هغه وخت به بیا د راتلونکو حملو د بیرې احساس ومنځ ته نه وای را غلی او د اوربند څارنه هم دومره ګران کار نه و .

که څه هم په وروستیو ورځو کې امریکا غوښته چې په غیر مستقیم ډول د سیګون پر رژیم باندې فشار راوړي او د ځینو مسائلو په برخه کې موافقه وکړي

او د سولې د موافقتنامې په نه منلو باندې خپل ټینګار پرېږدي سره له هغه چې د سیګون رژیم د امریکا د غوښتنې سره سم له نرمۍ نه کار واخیست خو بیا هم کومه نتیجه لاس ته نه ده راغلې ځکه نو په دې توګه اوس نو د امریکا

حکومت هم په دې لاره کې آرام نه کښېناست او تېره یکشنبه ئې بیا د شمالي ویتنام پر قلمرو باندې خپلې اکتشافي الوتنې له سره شروع کړې او د دغې هفتې د اوږدو په دوام د هغه هیسی ګوپه ډېر شدت بیا پر شمالي ویتنام باندې خپلې بمباري سختې کړې حتی تر دې اندازې چې شمالي ویتنام د قلمرو په مرکز کې ئې لا دغه بمباري دی نه کړې په داسې حال کې چې تر اوسه پورې د نړۍ عامه ذهنیتونه د دغه جهاني کړکېچني مسئلې د داسې حل

ملاتړ کوي چې هغه د بشریت د ډېر ښتونو او ګټو سره برابر وي او د مسئلې دوش بایدبر بو هروښانه عینیت تکیه ولرنه داچې غواړ نکي وي او د ویتنام د سولې د موافقتنامې د څېړو ټوډ لېری کړلو حل په لاره کې

یوازې هم دغه هیله تر سره کیدای سي . اوس نو هوال په ویتنام کې د جګړې د بیا سختېدو په او د هدو سره سخت مقاتیر سوی دی او د زړه له کومې هیله لري چې د

ویتنام د جګړې دواړې خواوې دې په فوري ډول خپله توجه د مسئلې د څېړو نو لیږی کوي او ته راو کړ هغوی اود مسئلې د حل په لاره کې هر هغه خنډ چې د واړي خواوي یو د بله سره لیري کوي او نه پرېږدي چې دواړه اړخونه

و یوی موافقې ته ورسیږي . هغه دی د ښه نیت له مخې د دوی تر منځ مطرح سوا و په هغه کې دې د دواړو طرفو څخه مؤثره همکاري وغوښتل سي .

البته د دوی د غه ګټه تماس د دی احساس له مخې نه دی چې په هغه کې دې د یوی خوا حقوق تر پښولا ندې سي او با یو دې هغه بل ته له خپلو حقوقو څخه تر یوه حق ورتېر سي .

خو دا هیله په هر ځای کې هر یو له ځانه سره لري چې د د ویتنام د جګړې دوام د یوه په ګټه هم نه دی نو ځکه به داوی چې د بشري نړۍ دغه د وامدار سردرد او د پای ته ورسیږي .

که څه هم په ویتنام کې د دغو یولې سختو حملو شروع د سولې موافقې ته د رسید و هیله له منځه وړې ده خو بیا هم په هیڅ صورت به د ویتنام کې د اوربند د ټینګولو د پاره

د یوی داسې موافقې ته د رسیدلو وخت له لاسه نه دی تللی او دا په دو خت ته د مخه یو کار دی که چېرې یو بل طرف

تر دی منځ یو ګام مخ ته راواخلي او نه پرېږدي چې په ویتنام کې تر دغه لا زیاتې خونړۍ صحنې تکرار سي

(پاته په ۳۳ مخ کې)

جنایي راپور :

د عبدالمنان امین په قلم

# هغه فراري چې د یوه پولیس د وژلو په تور

## نیول شوی دی، د خپلو جنایاتو څخه پرده پورته کوي

د پنجوايي د ولسوالۍ د تلوکانو او سیدونکي عبدالصمد د ګل محمد زوی چې د خپلو جنایاتو په سبب تورن شوی ؤ، څرنګه د پولیسو لاس ته ورغی؟

د کندهار د ولایت د امنیې قوماندانۍ د قتل او جرحې د څانګې آمر تورن میر آغا موضوع داسې بیانوي:

د عقرب په اتمه نیټه د کندهار د امنیې پولیسو خبر واخیست چې عبدالصمد او د هغه ملګری

عبدالخالق د اوړدو په کوڅه کښې په یوه کورکې اوسیږي پولیسو د دواړو فراریانو د نیولو د پاره د هغه کور تر نظارت لاندې ونیو او محاصره یې کړ.

هغه وخت چې عبدالخالق او عبدالصمد پوه شول چې پولیسو د دوی د نیولو د پاره ځان چمتو

کړی بیا عبدالخالق په ناڅاپي توګه له کوره ووت او د تومانچې په ډزو یې پیل وکړ کله چې د کور د دروازې مخې ته راورسیدو نو

پولیس چې راز محمد نومیده د تومانچې په ډز یې ټپي کړ او د تومانچې تر ډزو وروسته وتښتیدو او

د پولیسو اخطار ته یې هیڅ توجه ونکړه.

په دې وخت کې د یوه پولیس د ډزې په اثر عبدالخالق هم مړ شو.

د عبدالخالق ملګري عبدالصمد چې په کور کښې ؤ ځان یې د ګاونډیانو کورته واچاوه او هغه وخت چې غوښتل یې د ګاونډي د کور له بام څخه وتښتي په

تومانچه یې په محمد یونس نامي پولیس باندې چې عبدالخالق یې مړ کړی و ډزې وکړې.

په دې وخت کښې نورو پولیسانو د عبدالصمد په نیولو لاس پورې کړ او هغه یې د یوې تومانچې او ۱۵ دانو مرمیو سره ونیو.



عبدالصمد قاتل

محمد یونس پولیس چې سخت ټپي شوی ؤ په روغتون کې مړ شو.

د قتل او جرح د څانګې آمر وویل:

امنیې قوماندانۍ د عبدالصمد او مړي قاتل، او د دوه ملګرو او لیار نیولو د تحقیقاتو د پاره یو هیات وټاکه چې په هغه کې جګړن ګل میر، جګتورن

محمد عمر د قتل او جرح آمر او څارنوالۍ نماینده هم پکښې شامل ؤ.

هیات خپلو تحقیقاتو ته دوام ورکړ او عبدالصمد داسې اعتراف کړی دی چې، زه له «۱۵» کلو راهیسې د کوچنۍ منارې

او سیدونکي عبدالخالق حزب الدین زوی سره آشنایي لرم او په یوه کورکې ژوند کوو.

تیر کال د جدي په میاشت کې عبدالخالق د ورور فضل محمد سره د پنجوايي د ولسوالۍ د مرغانو کلي کې د تاج محمد په باغ کې

یو ځای د غوځ په کار بوخت وو نو موږ ته مو ویل چې شل زره افغانۍ تاسو ته درکوم که چیرې

حاجي پیرداد او مړی په قتل ورسوی.

موږ موافقه وکړه او یوه ورځ موږ دری کسه یعنی عبدالصمد، فضل محمد او حاجي پیرداد د

تاج محمد باغ ته ورغلو او سیدو په دې وخت کې او مړي فضل محمد په حاجي پیرداد باندې حمله وکړه او دی یې په مچکه غوزار کړ

او ما د حاجي پیرداد لاسونه ټینګ ونیول او موږ دواړو دی مړ کړ.

«۶۵ مخ»

ددغه ټولې چې مونږ کړه دده په جیب کې ۹۰۰ افغانۍ هم وې او هغه پیسې مونږ واخستې او د حاجي پیر داد مړی مونږ انګور دونا کا نو چووی ته وغورځاوه .

ددې پیښې وروسته زه او زما ملګري فضل محمد منزل باغ ته ولاړو کې د حاجي عبدالعزیز دوداني په چاړو بوخت ؤ او مونږ ورځی وروسته فضل محمد کله چې چارته ورغی ؤ، د پولیسو له خوا ونیول شو .

عبدالصمد بیا وویل دی چې زه مو تښیدم او په ارغنداب کې د سراج الدین په کور کې می هستوګنه کوله پدی وخت کې چې شل شپې تیرې شوی د فضل محمد ورور عبدالخالق له جلال آباد څخه کندهار ته راورسید، او مونږ دواړه د خوږو ورځې خپل ځان په کار مشغول کړی و. د څوږ لوی مناری او سید ونکی نجم الله او د کوچني مناری او سید ونکی موسی جان او د نجم الله ورور په نصر الله او صالح محمد او د لوی مناری او سید ونکی سراج الدین زما او عبدالخالق سره یو ځای سول او مونږ یوه دسته جوړه کړه .

پدی وخت کې د فضل محمد نیول څخه څو ورځې تیرې شوی دی چې زه موسی جان او عبدالخالق د تاج محمد باغ ته تللو او مونږ عبدالخالق ته وویل چې د تاج محمد په تحریک مونږ حاجي پیر داد وژلی دی او اوس فضل محمد بندی دی که عبدالصمد خوشی نسی نو د تاج محمد ژوندهم په خطر کې دی .

پدی وخت کې عبدالخالق وغوښتل په تاج محمد باندی وژړی وکړی خو ددی کار څخه منصرف شو تاج محمد د موسی جان د لوړی دواړی په اسپت مڅکی ته غورځاوه او مونږ د هغه له جیب څخه ۲۳۰۰ افغانی نغدی پیسی واخستلی او نو موړی مونږ ته وعده وکړه چې زه به فضل محمد بند څخه خوشی کړم ۴ څو موده وروسته عبدالخالق د تاج محمد په عنوان یو لیک ولیکه او په هغه کښی ئې دی تهدید کړ که چیری فضل محمد خوشی نشی نو ستا ژوند او حیات په خطر کښی دی مونږ دا لیک د تاج محمد باغوان ته ورسپاره .

وروسته له هغه عبدالخالق یو ځل بیا دا سی تهدید کوونکی لیک نوموړی ته واستاوه خو د هغه جواب معلوم نشو .

عبدالصمد شرعاً اعتراف کړی دی چې ورو ستنه له هغه ما او زما ملګري په مختلفو چنایاتو لاس پوری کړی دی چې په دی ډول دی :

۱- د ارغنداب د ولسوالی د لوی مناری د یو نامعلوم سړی وژل چې پدی پیښه کې عبدالخالق او موسی جان هم زما سره ملګری ؤ او مونږ د مړی څخه یو ټوپک راوړی او لاس ته راوړه چې وروسته مو هغه د لښکرګاه په ښار کښی په یو دلال باندی خرڅه کړه چې د هغو پیسو څخه یو ښکا دی ټوپک او (۱۵۰۰) افغانی نغدی پیسی لاس ته راغلی .

۲- ما او موسی جان د ارغنداب په ولسوالی کښی د باګهان په کلی کی یو سړی لغ کړ او د هغه څخه مو (۱۷۰۰) افغانی لاس ته راوړی .

۳- د تیر کال په ژمی کښی د لښکرګاه په بولان کښی ما او موسی جان، او عبدالخالق یو نامعلوم سړی د چړی په واسطه ټپی کړ او له هغه مو ۲۰۰ افغانی نغدی پیسی یوه ساعت لاس ته راوړه چې ساعت د عبدالخالق څخه ؤ .

۴- په تیر ژمی کی مونږ د ننډ ولسوالی د چار باغ په کلی کښی یو سړی لغ کړ او د هغه څخه مو سل افغانی لاس ته راوړی .

۵- د سږ کال د غبر ګولی په میاشت کی زه عبدالخالق نجم الله، سراج الدین موسی جان او صالح محمد کله چې د و بالی پرغاړه د ځی و د لوی مناری او سید ونکی دار محمد د حاجي سرفراز زوی مخی ته راغی ددی کیله چې نجم الله د هغه سره پخوانی کینه درلوده هغه مو هم مړ کړ .

۶- په تیر ژمی کی د بولان په کلی کښی مو یو سړی لغ کړ او د هغه بایسکل مو واخیست او د کندهار په چهار سو کښی مو (۵۵۰) افغانی خرڅ کړ .

۷- په تیر ژمی کی ما او موسی جان د میوند په شاوخوا کښی یو سړی لغ کړ او د هغه څخه مو یوه راډیو لاس ته راوړه چې د کابل په شور بازار کښی مو په ۱۸۰۰ افغانی خرڅه کړه .

۸- په تیر ژمی کی ما عبدالخالق او موسی جان د ارغنداب د خالیشک په کلی کښی یو سړی لغ کړ او د هغه څخه مو ساعت لاس ته راوړ چې ساعت مو په دلال باندی په ۶۰۰ افغانی ګرو کړ .

۹- په تیر ژمی کی مو د پاشمول د سړک له غاړی څخه یوه ګونی کشمش غلا کړه .

۱۰- په تیر کال کی مو د سنګری د سړک پرغاړه یوه سړی لغ کړ او د هغه څخه مو ۱۳۰۰ افغانی لاس ته راوړی .

۱۱- د سږ کال په پسرلی کښی ما موسی جان عبدالخالق په فراه رود کښی د یوه سړی څخه د هغه

(پاته په ۹۹ مخ کی)

# په کندهار کښې د موټر سایکل ځغلولو لوبې

## کندهاریان د ورزش او سپورټ سره د پخوانه زیاته علاقه لري

د کندهار مشهوره میوه او حاصل خیزه ځمکه لکه هر څنګه چې د میوو بهترین باغونه، شنه چمنونه او ښکلې ګلان لري ده، د ځنګه ئې خلک ډیر زنده دله، د میلې او باندارشوقیان دي او د کال په هر موسم کښې ځان ته بیلې بیلې میلې او شوقونه لري او په دغه میلو او باندارو کښې سپورټي لوبې هم کوي.

د کندهار په ښار کښې تر دیرش کاله د مخه پوري د آس ځغلولو لوبې کیدلې او د هغې ننداري د پاره ډیر زیات خلک ورتلل، خو اوس هغه نه کیږي.

د کرک، سپي او چرګانو جنګول هم د یوې معلوم الحاله ولې عنعنوي لوبې دي چ-----ې د میلو په ورځو کښې د هغه کار کوي او په دغو شیانو شرطونه تړي او د دغو شوقونو څخه خوند اخلي.

غیر ایسټل زموږ لوبه عنعنه ده او زموږ کلیوالي ځوانان په غیر ایسټلو او پهلوانۍ کښې ډیر تکړه دي د غیر ایسټلو به ډیره په زړه پوري ده او د هغې د ننداري د پاره زیات خلک سره راغونډیږي.

زموږ خلک هر کاله چې میلو ته ولاړ شي نو ځینې مخصوصې لوبې چې په کندهاریانو پوري اړه لري لکه ټنډه خره، درنه خط، غوسۍ، ملي اتڼ، ودت ودت، توپ ډنډه، اتاګي، الله داد، ډیره غورځول، غور ځیدل او داسې نورې لوبې هم کوي.

د ناستې په لوبو کښې زموږ خلک ډیر دوډو شوقیان دي د سطرنج او کرمبوټ سره هم علاقه لري او په ورڅو په تیره بیا په ټیکه کښې زیات مهارت لري او په هغه کښې د ځینو مخصوصو اشارو څخه کار اخلي،



په کندهار کې د موټر سایکل ځغلولو د لوبې قهرمانان د کیڼې خوا څخه ښې خوا ته ښاغلي محمد صدیق لومړی، آغا محمد دوهم او تورک دریم نمبر شول.

---

په سطرنج کښې د کندهار د ځوانانو مهارت د یادولو وړ دی او هر کال د یرش تنه ځوانان د سطرنج لوبې کوي او هر څوک چې بریالی شي د قهرماني لقب او کپ ور کول کیږي.

د یو څو کلونو راهیسې په بین المللی سو یه د پهلوانۍ آزاد او ملي ټیم هم جوړ شوی او د ګل محمد پهلوان په مشرۍ دغه ټیم خپلو لوبو ته دوام ور کوي او په ملي جشنونو او اخترونو کې یو زیات شمیر خلک د هغو ننداره کوي. که د المپیک ریاست د دغه ټیم سرپرسته وکړي او د هغو ځوانان د پهلوانۍ د لوبو د پاره کابل ته ور وغواړي او په دغه شکله ئې تشویق کړي امکان لري چې ځینې کسان ئې د پهلوانۍ په بین المللي لوبو کښې هم مهارت او شطارت ترګند او له دغه درکه خپل هیواد ته افتخارات وګټي.

زموږ په لیسو کښې زیاتره د فټبال اووالی بال لوبې کیږي، پنګ پانګ هم په دې ورو ستیو

کلونو کښې زموږ په ځوانانو او پیغلو کښې رواج موند لــی دی خو پردې لولو خپرو سر بیره.

بیاهم دلته دېده مرغه د سپورټ کوم کلب نه شته، که څه هم زموږ خلک د سپورټ او ساتیر یوچ ېر

شوقیان دي او د غه لوبې یوډول تفریح ګڼي.

دخپلوا کې په ملي جشنونو کښې زموږ خلکو بایسکلونه

هم ځغلول او د بایسکل ځغلو لو بې ئې کولی او سږ کال زموږ یوشمیر ځــوانانو دځینو ښار یانو

په تشویق او مرسته دلومړي ځل دپاره د موټرسایکل ځغلو لو لوبه و کړه.

دغه لو به چې پــه هغه کښې دری تنه بــربالی شول لومړی نمره ښاغلي محمد صدیق ناني

پنځه شپیته کیلو متر لار په پنځه و یشتو د قیــقو، دو هم نمره ښاغلي آغامحمد دغه واټن په

دیرشو د قیقو او دریم نمره ښا غلي نورك په درو دیرش د قــیقو کـــښې دغـــه لار

وو هله.

د لو بــې میدان د میــوند دو لـــوالی څخه بیا دارغنداو

درود پل ټاکل شوی ؤاو ددغې لو بې دانندازې دپاره یوزیات شمیر علاقه اروتکي دارغنداو

د رود پر پله ولاړ او دهغه سیل ئې و کړ.

په لو به کښې اتو تنــو موټرسایکل سپرو برخه واخسته او دري جایزې هم ددوی له خوا

برابرې شوې وې او د ترافیکو پولیسو هم د لوبې په وخت کښې

خپله و ظیفه پــه ښه تو ګــه اجرا کړه.

دلوبې په پای کښې دیوه تن ښاري له خوا لومړي نمره نه یو ترو برا بالاپوښ، دوهم

نمره ته یو میلر او دسرو زرو انګشتري او دریم تن ته یو میلر د جایزې په ډول ور کــړه

شــول.

ځینو شوقیانو دخپلې خوا څخه د څو درو تنو ته ځینې نغدې جایزې هم ور کړې ی.

مـوږ د خپـلـوښـــــادی

وروڼو دموټر سایکل ځغلو لو دلوبې څخه خوښ شو لو او هیله

کوو چې په دغه ولایت کښې د سپورټ کلبونه او ملي لیمونه

منځ ته راشي او بیلی بیلي لوبې و شي چې له یو اړخه زموږ

د خلکو دساتیــرې او ښـــې

سر ګر مۍ سبب وګرزي بلکه

په دې ډول زموږ د ځوانانو

بدني ودې او روزنې ته هم

ګټه ورسیږي.

(۷۵مخ پاته)

## هغه فراری...

موټرسا یکل ۹۰۰ افغانی نغدي پیسی او دغادي دسمال په زور واخیستل

چې موټر سایکل مو په ۸۹ زره افغانی

په یو شنواري قاچـاق وړونـکـي باندي په جلال آباد کښې خرڅ کړ او په هغه پیسو مو یودانه تفنګچه

په ۲۵۰ افغانۍ واخیستل.

۱۲- د تیر کال په ژمي کی ما او م. سی جان د عبدالله جان کاکړ

دپاشمول په جمنو کښې دوه تنه لغ کړه

او ددوی دری سوه افغانۍ مو هغي واخیستلی.

۱۳- سږ کال ددوي په مبارکه میاشت کی مو۲ تنه د کوچني منارې

درود پرغاړه لغ کړه. دهغو څخه

مو دوه ساعته یوه جوړه بوټونه یوه دانه پټکي په زور واخیستل.

دقتل او جرح د ټولنګی آمر وویل

چې دعبدالصمد دوسیه بشپړه او پولیس

دهغو کسانو په لټه کې دي چې دده سره په دغه دوسیه کې شامل دي.

## انسفالوګراف

دا دستګاه دشلمې پیړۍ دمهمو

اختراعاتو څخه ده چې المانیانو و میدان ته راایستلې ده. دا آله د انسان په سر کی

لصبیږي یو صدا او لیوالی سره یملوی

د جانی او مجرم جنا یتو ګناه هم

په اسانه معلو موی د انسان د مغز اندازه هم ښکاره کوی.

«۹مخ»

د س.م.امین پاڼیوال ژباړه:

# د لوفتهانزا د الوتکې ـ ٦١٥ ـ شمېره الوتنه او فلسطینـــــــــــــی سرتېري

## نړدي وو چې په هوا کې له منځه ولاړ شو

د میونخ له بندیخانې څخه د دوو تنو فلسطیني سرتیرو خوشې کول، چې د اسرائیلي لوبغاړو د ترور په تور د محاکمې ته سترګې په لاره وو، په نړۍ کې یوه لویه آوازه خپره کړه.

دا دی د شترن جریده د لوفتهانزا د الوتکې د پیلوټ والتر ګلاوسن د خولې د دغې عجیبې پیښې داسې تکل کوي چې بیله شکه د فلسطیني سرتیرو هغه عملیات کوم چې د وی د خپلو هم سنګره ملګرو د خوشې کولو په لاره کې سرته ورسول، د آزادۍ غوښتونو د مبارزو په لاره کې بې ساري ورپرانیست.



د لوفتهانزا د الوتکې پیلوټ والتر ګلاوسن خبریالانو ته د سرتیرو د تښتولو په باب توضیحات ورکوي

د لوفتهانزا د الوتکې کارکوونکي په داسې حال کې چې غوښتنه ئې پر (٥ ـ بجو او ٤٥) دقیقو په ـ ٦١٥ ـ شماره الوتنه خپله الوتکه د بیروت او انقرې څخه د میونیخ په لور د خوځوي، له خوبه راویاڅېدل.

❀ ❀

د ماښام د لومړي یو ساعتو په شروع کې عیاش ځوانان او ښایستي پېغلې په نایټ کلب کې سره یو ځای سوي وي.

❀ ❀

د اکتوبر ۲۸ شپه د والتر ګلاوسن د پاره یوه لنډه شپه وه، دده کور چه (د کسکسیود) په هوټل کې د (کاف دودوی) د نایټ کلب پرسر وه. دغه نایټ کلب د جهاني سیلانیانو د

پاره د عیاشۍ او ساعت تیرۍ ځای پر نامتو مرکز دی.

د یوې خوا د اکتوبر د ۲۸ ماښام د هفتې دود ستې د رخصتۍ وه او د بلې خوا د دغې شپې ماښام د لومړي یو ساعتو په شروع کې عیاش ځوانان او ښایستي پېغلې په نایټ کلب کې سره یو ځای سوي وي. د نایټ کلب په دننه کې د خندا آواز و، د سپو د ټپو قرو حرکت او د دغو موټرانو د دروازو خلاصو لو اواز او د ګلاوسن د سترګو څخه خوب وړی و. د شپې د نمائي نه ورو سته لو ټو ګلاوسن ته بیخي خوب نه ورتې.

د لوفتهانزا د الوتکې کارکوونکي په داسې حال کې چې غوښتنه ئې پر (٥ بجو او ٤٥ دقیقو) په ـ ٦١٥ ـ شماره الوتنه خپله الوتکه د بیروت او انقرې څخه د میونیخ په لور و خوځوي له خوبه راپاڅېدل.

ګلاوسن د یوې لنډې او ساده سپارنې تر خوړلو وروسته د خپلو شپږ و کسو عملې سره یو ځای په ټکسي موټر کې هوائي ډګر ته ولاړل. د بیروت په هوائي ډګر کې د الوتکې پیلوټ تاځر ګنده‌شو ه چې په

د الوتکې (۱۰) تنه د ټولو د ټېسټ او په برخه او (۳) تنه نور په اوله طبقه کې ځای لري پیلوټ د اولي

طبقې سورلیو د جملې څخه دوه تنه د هوائي ډګر په سالون کې د مخه لا لیدلي وه چې ناڅاپي خپل ځکو ته چټک ګول په دې وخت کې د پیلوټ ستر ګې په دوی ولګېدې د دغو دوو تنو څخه یو خردل اوڅو ی و

او : ګ رم معن عیراد ملیت له سوای څنې ښکاره کېدای د ی (۳۵) کلن معلو میدي او بو اوږ : بالا بوښی



پورتني عکس د تښتول سوي الوتکې خط السیر ښيي

ز ګنونه ئې ورته کړي وه، اغوستي و. ده په کمربند سره خپله ملاهم تړلې وه. بتلون ئې ډېر نازک او روښانه ټو د اولي طبقې مربوط دهم افرداسې معلومېده چې تازه ئې د خپل عمر په (۳۳) کال کې پښه اېښې وه او په

ښکاره ډول ئې د یوه سوچه عرب نماینده ګي کوله. ده د ونګر والي، پراخ تندي، غنم رنګه پوټکي او ګڼو ږیرو وده ته یو عجیبه څېره ورښښلې وه.

ګلاسن دغو دواړو ته په څیر څیر و کتل خو کوم په زړه پوری شی ئې په دوی کې ونه موند.

د الوتکې ټوله سورلي الوتکې ته وختل د ۷۲۷ جیټ الوتکې پیلوټ د (مستر الفا براو خلج اندیا)

په علامه ئې د بیروت د هوائي ډګر څخه د سولنګ موادوا خستل.

دوه تنه مسافران چې پیلوټ دوی د مخه لا د هوائي ډګر په سالون کې لیدلي وه د الوتکې د لومړۍ طبقې په کابین (کرڅه) کې چې د پیلوټ د کابین څخه ئې لږ او محدوده فاصله درلوده، ناست وه. چاغ مسافر د کړکۍ د اړخ ته

او ډنګر مسافر بیا د ده په اړخ کې آرام ناست ؤ. دوی د دواړو د بله هیڅ خبرې نه سره کولې او داسې ئې ښکاره کول چې دوی یو د بله هیڅ نه سره پېژني.

ګلاوسن الوتکه په حرکت راووستل او د مخکې څخه ئې د ۱۱۰۰۰ متره ارتفاع د الوتنې په پرمختګ شروع وکړه د پیلوټ معاون ګیرد مایر په ۱۲۶،۳ فریکوانسي د تیکر سیاد مخکنی اسټېشن سره د داخلي بې سیم د مخابرې د لارې د تماس نیولو په حال کې ؤ.

د نوفمبر د میاشتې ۱۵-۶۶ - شاره الوتکه د مدیترانې په بحیره کې د قبرس د شمال د ډلو سیمو برخو په استقامت په ډېره چټکتیا پر مخ روانه وه و ریځه‌وه، آسمان

بیخي شین ؤ، د لمر روښنائي د الوتکې د چاو لو د باره په زړه پورې هواسا عده کړې وه،

د الوتکې په بخلنځي کې ښکله ماینګه ابراهام سپیو الحسه، او د الوتکې میلمه بالاند مسافرانو ته د سپارلي په تیارولو لګیا وه او په دې سبب ئې و نه سو ای کړای څه عرب کوم چې ور ته بالاپوښ ئې

اغوستی ؤ او د خپله ځایه څخه و لاړ سو، و ویني. دی عرب بېله یو غږ او غوغا څخه د پیلوټ د کوټې د ور دروازې ته ورسېد.

د سهار پوره ۶ بجې او ۲۰ دقیقې وې چې ګلاوسن د خپلی کوټی په دننه کې یو غیر عادي ږغ واورېد کله چې ئې مخ ور واړاوه نو ستر ګی د تومانچې پر یوې میلی و لګېدې. تومانچه د هغه چاغ عرب په لاس کړوه

په عین وخت کې د الوتکې د پرواز انجینیر (بورګرن شرایدر) د هغه بل عرب د خوا د الوتکې د

کابین څخه بلی خوا ته رغړ د ول سو. مادی د الوتکې یو بله میلمه یا له په داسې حال کې چې له ډېرې ویرې څخه ئې زاخستې وه د الوتکې و بخلنځي ته پناه یوړه.

گلاوسن د الوتکې پیلوټ د شترن څېر ها لته داسې وویل: د الوتکې انجنیر به الوتې بېد پیلوټ د کوټې څخه وایستل شو د دغو دوو تنو مربو څخه ئې یوتن په داسې حال کې ئې چې په یوه لاس کې ئې تومانچه نیولې وه په دابل لاس ئې د الوتکې انجنیر په مخه کېږي ژ دی عرب خپله تومانچه ورما او سقیو اډ سی ته ونیوله او امر ئې وکړ چې په لوړه ولاسو په دشا پرخوا د تیارۍ ودو ستی برخې ته حرکت کوي.

د الوتکې د پیلوټ گلاوسن لومړی اشتباه دا وه: هغه چې باید ئې هوای سوی وسول. دوهم عرب اخطار وکړ چې آرام اوسی او د خپله ځا به ونه خوځی.

چاغ عرب به داسې حال چې تومانچه ئې په لاس کې نیولې وه په ډېر درد ئې په الوتې بنه ده ته په خپر وکتل، ښندي ئې د خولو څخه ډکه ژړ ګوي شیبې چوپتیاوروسته ئې په دربدلی آواز وویل: له دې نه وروسته الوتکه زما په اختیار ده!

د انګلیسي لهجې څخه ئې داسې معلومېده چې عرب دی.

گلاوسن په ډېره سړه سینه وویل:

- څه غواړې؟

تښتوونکي په جدي او آمرانه لهجه ځواب ورکړ:

- د قبرس په لور دورګرځه.

- ولې؟

- چې الوتکې د پاره ډېر د سونګ مواد واخلو!

گلاوسن د قبرس د هوا د حالاتو خبر واخیست او د الوتکې د را کښته کیدو اجازه ئې په لاس راوړل. د دغو کارو د سر ته رسیدلو وروسته تښتوونکو مکروفون په خپل لاس کښې ونیو او د مخکنۍ استیشن ته ئې وویل:

له دغې شیبې نه وروسته د الوتکه د لوفتهانزا د -۶۱۵- شماره الوتنې په نامه نه یادوی ځکه چې د (میونیخ ایرپشن) په نامه بلله شوه. الوتکه بیله کومې پېښې د نکوسیا په هوائي ډګر کې کښته شوه او د بنزین په اخستلو ئې شروع وکړه. دې کار نږدې شل دقیقو پورې دوام وکړ او د پنځو ټنو په اندازه ئې د الوتکې ته د سونګ مواد ورواچول.

تښتوونکي په دغه ټوله موده کې د مکروفون په مرسته د سونګ د موادو د تصدۍ د کارکوونکي سره خپل تماس جاري ساتلی و.

په ۶ بجو او ۲۵ دقیقو الوتکې بیرته په الوتنه پیل وکړ. کله چې الوتکه د ځمکې څخه لوړه شوه نو گلاوسن د تښتوونکي څخه پوښتنه وکړه:

- کومې خوا ته باید ولاړ شو؟

- د میونیخ په لور.

کله چې الوتکه خپل اوج ته ورسیده گلاوسن و تښتوونکو ته په ډېر نرم آواز چې پر دوی به ئې اغیزه وکړي وویل:

- تاسو کولای سی کاملاً ډاډه اوسی مونږ به هیڅ یو حرکت ستاسو د غوښتنې نه پرته سر ته ونه رسوو.

د لومړي ځل وو چې تښتوونکي اړو مسل ده وویل «تیره شپه مې یوه شیبه هم سترګې نه دي سره ورغلې».

خوشبینی په ښه خوله تیري سوي وروسته تښتوونکي وویل:

دغه پلان زموږ د دوو تنو سرتیرو بندیانو د خوشې کولو په نیت چې د میونیخ په پېښه کې ئې لاس درلودی تر اجرا لاندې نیول شویدی.

الماني مامورین باید دغه دری تنه سرتیري د میونیخ و هوائي ډګر ته راوړسوي نو هغوی خت به (د میونیخ ایرپشن) د میونیخ په هوائي ډګر باندې راکښته سي او خپل ملګري به د ځانه سره واخلو او الوتکه به د یوه عربي هیواد په لور والوزي په هغه ځای کې به بیا الوتکه د خپلو مسافرانو او سورلیو سره یو ځای خوشې کېږي. که زموږ د دغې نقشې د خنثی کولو د پاره کوښښ و نه سي نو موږ به الوتکه په هوا کې وچوو او زه او ملګري دې ته چمتو یو چې په دغه لاره کې خپل ځانونه د لاسه ورکړو.

گلاوسن ته اجازه ورکړه شوه چې د لوفتهانزا د مرکز سره خپل تماس ونیسي. د لوړې فریکونسي له لارې د فرانکفورټ سره تماس ونیول سو او د تښتوونکو شرائط ئې ودوی ته مخابره کړه.

تر دغه مهینې سرتیري د الوتکې په ټنه کې په بولې فعالیتو لګیا وه د دغې ډلې مشر د یوې چرمي کڅوړې څخه یو شمیر چاودېدونکي مواد راوایستل او د الوتکې په مخ کې ئې د ټنه نصب کړل او بلې ډلې بیا هغه چاودېدونکي مواد په نورو کڅوړو کې اچول کوم چې د الوتکې د مسافرانو څخه ئې په لاس راوړي وه.

کله چې ټوله شیان او کارونه ئې ترتیب او بشپړه شوه نو د کوماندوګانو مشر د لوډسپیکر په وسیله و مسافرانو ته اخطار په ډول وویل: «که هرڅوک له تاسو څخه د مخ د شیانو نه استفاده وکړي او یا د الوتکې و دروازو ته ورنږدې سي نو الوتکه به بیله کوم ځنډه په هوا کې وچوي».

# کورنی ژوند څه شی دی

دکورنۍ ژوند اساس دښځې لهخوا ايښودل کيږی یعنی په کورنی ژوندکی تر هرچا زیات مسؤلیت میرمنی ته متوجه دی. دکور بی انتظامی داولادو

بی تربیه توب داډول هغه شیان دی چی مسئولیت ئی و میرمنی ته راجع کیږی. په دغه اساس بوه میرمن باید دژوند په ټولو اړخونو پوه وی او دکوراو کورنی سره

زیاته مینه او علاقه ولری. البته ددی دعلاقه او مینه باید دخاوند لهخوا استقبال شی او هغه ته په دراندسترگه وکتل شی کهنه نو ددی داحس مری او دژوند څخه

مایوسه کیږی. داسی میرمنی پیژنو چی کله دبلاندی داوزی نوسیږی ته دافکر ورپیداشی چی داڅوانه باسلیقه او نظیفه ده او ځایی دکوراو ماشومانو ترتیب پهئی

هم دغسی وی. مگر داسی نهده کله چی ئی کورته ورسی نو په حقیقت ورته معلوم شی چی ددی په دغه مرورینه ورځ ئی کور دطویلی په ډول دی. بلهڅ له بیا داسی میرمنی

ستهچی په خپل ځان کی هیڅ چرت نه وهی او ټول له توجه ئی دکوراوماشومانو خواته متوجه وی کوراو ماشومان ئی پاک مگر په خپله په دخدمتگاری شکل لری داډول

میرمنی هم دکورنی ژوند آدابو څخه پوهنهدی.

هغهډله میرمنی چی دواړه خواوی پوره کړای سی یعنی هم دخپل ځان په نظافت او هم دکوراو ماشومانو

په نظافت کی زیاد باسی په رشتیا چی دوی پوره میرمنی دی. نهداچی بوه خواپسیږه کیږی او بله څنی پاته شی.

هغه میرمنی چی د دبلاندی وظیفه هم پرغاړه لری او نهسی کولای چی دکورنی ژوند ټول اړخونه مراعات کړی باید دخپل خاوند څخه مرسته وغواړی او ددی

مرستی غوښتنه باید په آمرانه لهجه نه وی ځکه سړی بانلاتری او سه هغه فکر کوی دوی حاکم دی. تو په دی امبت وربلاندی داخبره ډیره بده لگیږی رامرسته غوښتل باید غوښتنی او مرستی ډول ولری.



تهیه کوونکی ملاله اڅکزی

ژباړه

# دخوب ددوا پیښی

## هوښیاری میندی باید دخپلو ماشومانو راتلونکی ژوند ته توجه وکړی

بلی داډول غمناکی پیښی تر اوسه ډیری منځ ته راغلی دی. او هرکله چی ددې خطرناکه طوفان مخه و نهنیوله شی داسی ډیری پیښی به نوری هم منځ ته راشی

تر اوسه پوازی په متحدهنو هیوادوکی ددې کارمخه نیول شویده. په دې ډول چی دخوب دوا څرڅلاو ئی منع کړیدی.

میرمن دکتر س فرانسیس او لیهام کلزی چی په متحده اضلاع کی دغذائی او بی هوښی کوونکو دواوو ازموینه اوکنټرول وظیفه ئی په غاړهده پسله هغه چی دخوب راوړونکو دواوو تاوان ورته یقین سو او په دی برخه

کی ئی ډاډ حاصل کړ په دې فکر کی شوه چی ددخوب څرڅلاو منع کړی نو موړی میرمن چی په دغه ځانگه کی متخصصه هم ده، دهغه کوښښونه په نتیجه کی چی ددی او ددی

همکارانو لهخوا اوشوه په خپله هیله کی بریالی شوه څو داتلونکی نسل دفساداو بربادی څخه وژغوري. بلی اوس دخوب راوړونکی دواوی دامریکا په متحده

اضلاع کی منع دی. که څه هم نور هیوادونه ددې مضرو دواوو په ضرر پوه شویدی اولاتر ډاکترانو دهغوی بد عواقب ټولو ته ابلاغ کړیدی خو بیا هم تر اوسه ئی

دپلور او اوپیربد لو په هکله کوم تصمیم نهدی نیول شوی او ورځ په کاناډا استرالیا او اروپائی هیوادو کی ددې مضری او خطرناکی دوا څخه استفاده کیږی.

مګر ډېر ژر به ددې اوی ضرر څخه ونیول شي دغو غمناکو صحنو منځ ته راوړونکي چې به ی جمله کې مېندې هم شاملې دي او په خپل لاس د خپلو ماشومانو د تراژېدي صحنو لیدونکي دي او د هغه دلیدلو څخه خپل روح دردمن کوي.

اوس نو د هوښیارو او حساسو مېندو لپاره لازمه ده تر څو چې د دغو دواوو په استعمال کې پوره پاملرنه وکړي او د خوب دواوو څخه په تېره بیا د حامله توب په وخت کې پرهېز وکړي.

تر څو چې د دوړو مصیبت ځپلو مېندو په شان د فلاکت او نه جبرانوونکي تاوان سره مخامخ نه شي. اوس طب د هغه ماشومانو په هکله چې په دې ډول دنیا ته راغلي کاملاً عاجزه دی او کار مخ ته نه سي بیولای او هغه بې ګناه او ستم دیده ماشومان به د ژوند تر پایه معیوب وي ځکه ددې دوا د استعمال په نتیجه کې ماشوم حتماً بیله یوې یا دوو عضوونو ی ته راځي، مثلا هغه ماشومان چې یوه پښه یا یو لاس نه لري.

یوازې د نجات لاره دا ده چې د حامله توب په وخت کې باید د خوب دواوو د استعمال څخه جدا ځان وژغوري تر څو چې د ماشومانو د راتلونکي ژوندانه د سختیو سره مخامخ نه شي او یو سالم ماشوم دنیا ته راوړي.

ژباړه:

# د ښځې مقام او اجتماعي وضع

ملګرو ملتونو د هغو مسایلو لپاره چې په نړیوال ډول اړه لري کوم فرعي اداره نه لري لیکن د ښځو د وضعې لپاره یې یوه خاصه کمېټه منځ ته راوړې ده او داسې ښکاره یې چې باید د ښځو وضع په بین المللي توګه کې انکشاف وکړي او د ښځو د وضع کمیسیون په دغه عملیه کې د مېنځګړي وظیفه اجرا کوي کمیسیون په دې اړه د وختو کې خپله کلنۍ شپږ ویشتمه غونډه په ژنیو کې سرته ورسوله د دې کمیسیون د رییسه مېرمن ایوجینیا سټیوانس وه چې د لایبیریا اوسیدونکې ده دې د کمیسیون د سابقې په هکله په خپله بیانیه کې داسې وویل:

د ښځو د وضع کمیسیون په ۱۹٦٤ کال کې د ملګرو ملتو له غړو څخه غوښتنه وکړه، تر څو چې د هغو مسایلو په باره کې چې د ښځو اقتصادي، تربیتي، مدني او سیاسي حقوقو ی د ښځو اقتصادي او اجتماعي شو راته پوره کړی ی او پدې هکله سپارښتنو ته وکړی ی په تیرو ۲٤ کلونو کې کمیسیون د ښځو په هکله نه ستړې کېدونکې زحمتونه کښلي دي مېرمن سټیوانس زیاته کړه چې ښځو د اجتماعي مجادلې په صورت ځان تقریباً مساوي حقوقو ته ور رسولي دي د مثال په توګه تر ۱۹٤٥ کاله پورې یوازې ایمی آزادو ملکونو ښځو ته د رایې حق ورکړی ؤ ان تر ۱۲۳ زیاتو هیوادو کې ښځې د دې حق ته رسیدلې دي مېرمن سټیوانس وویل «سربېره پرلاس ته راغلي پر مختګ د ښځو او نارینو تر منځ د مساوات تامین د رای د حق اخستل او په کار اچول او د قانون او حقیقت تر منځ یوه لویه خلا جوړه کړې ده» کمیسیون په لومړي سر کې د ۱۹٦۷ کال د عمومي غونډې د اعلامیې د تطبیق په هکله د ښځو په منځ کې د تبعیض د منځه وړلو پر ضد ای تشویش درلود. د هغه وروستي معلومات په اساس چې د حکومتونو او د ملګرو ملتو د اختصاصي ادارو څخه لاس ته راغلي دي، د ښځو وضعې کمیسیون راپور اخیستی دی چې د ګڼ هیوادونو تر منځ یو عمومي تمایل سته تر څو چې د ښځو پرضد تبعیض د ۱۹٦۷ کال د اعلامیې مطابق د منځه ولاړ سي. سربېره پر دې تر اوسه د کمیسیون په نظر هم د دې عمل د تطبیق په هکله موانع موجود دي.

کمیسیون امید ښکاره کړی دی چې د اعلامیې د بشپړه تطبیق د پاره به اوس هم هڅه وشي د مساوي معاش مسئله هم تر بحث لاندې نیول شوې ده.

د ۱۹۷۱ د اکتوبر تر پنځلس تاریخ پورې ۷٤ هیوادو د مساوي معاش اساسنامه تصویب کړې او ۷۷ هیوادو عدم تبعیض په کار کې منظور کړ. د کمیسیون د بحث په وخت کې د کمیسیون غړیو د حقیقت مجدداً تایید کړی چې ددوی هیوادونه به مساوي معاش د مساوي کار په مقابل او د عدم تبعیض په کار کې رعایت کړي.

مېرمن آف آندرین د رومانیا نماینده په کمیسیون کې وویل چې ښوونه او تربیه په ښوونځیو او پوهنځیو کې د ښځو او هلکانو له پاره مساوي موقع ورکړې ده تر څو چې مساوي اوصاف کسب کړي او د مساوي کار په مقابل کې مساوي

# دغنمو وږی

## پنځمه برخه

ته بیا ژوندۍ پرې کړه دا ټوی — د تیرې تورې له برېښه
تور یالي زلمي دا پسا لـه — بیده خاوره کړه داوېښه
د زمرو پلرو په څـېر ته — دا دنیا کړه در ته هېښه
د پروت په شان جګړن دا — په هېباک له هره برېښه
چې د «کروړ» د تېرې تورې، ځلاځل کا بیا له غرونو
هر ژړن دښمن لاو ډېری، تښتي هر لور په ټرپوځو

❀ ❀ ❀ ❀

بیا ودان کاد غور غروکي — د سوري ودان شوي کورته
د محمد سوري روح ښاد کا — چې ژړه چاو دي ولاړې ګورته
د غوریا تو به ننګر بو — بیا کړه بل مې شوي اورته
د شهاب توم دا ژوندي کړه — چې ای ځلوه هر لورته

❀ ❀ ❀ ❀

غیاث هم روښانه لمروه په دا شوه تیاره ژبوته — چې په سر به ئې خول کښېښود ورته ایل وه اولسونه



دلوی احمدشاه بابا د تاج ایښو دلو مراسم

«د هلمند له پاکي غېږې — د سیستان و پا څـوه ته
بیا ملي بیرغ کړه پورته — لو د نیان و ښودوه ته
د محمود عزت کړه توی — غزنویان مه هیر وه ته
خپلي غېږې ته په تما نغه — قول او اس در کشوه ته
د شېرشاه روح ګوري تا ته، چې ئې ښاد کړې په مېړانه
پښتانه سره دا غونډ کړي، له خیبره تر کوسانه»

«غزنوي غوښتي بيا هسک شه خپل ملت دې ته دعوان کړه
د ټيکو به څير پري پاڅه نر بدلي تون ودان کړه
بيا تهذيب او عظمت خپل را څرګنده په ښه شان کړه
په کلتور، علم وصنعت خپل زيبا ئي ددې جهان کړه
خپل وطن له تا نه غواړي ځان جهان په څير کالاوته
چې پوهان به پري داتول ده، هم غوزله‌ئي علوته»



د وحدت ږغ کړه رانوي بيا دې غرو په‌شيلو کي
بولا څه ډير به وپا څي پو هنوال په پښتنو کي
آزاد خان به‌څير ژمري به کړي پيدا په ښنوډو کي
چي په‌مرګ ئي ځان خوښ‌ته ؤ د پرد بو هد برو کي
وپل: ښځې مي امانت کړي، پردي‌خاوره پردي‌تون‌دي
ځادي پوسي له‌دې ځايه، که پوتن پاته پښتون‌دي



د وطن ښکلي ژلمي بيا و روزه په‌ښه عرفان ته
چي د علم په ځل وو ژي دلوړ تيارا په ميدان ته
د ټيکو په څير هيې و نه بيا داوو ژي دې جهان ته
نوم نښان د ښه تهذيب بيا و ګټه ژمري افغا ن ته
له مغزو څخه دتپر خپل— تفرقي فکر و باسه
بوا و لس جوړ کړه له‌دوي نه، تودا و سپين‌دي بي اساسه



# د محبت خان وېناه

په‌دي‌وخت کي محبت خان بيا و کتل د احمد خو اته
به ادب او احترام شو ځان ئي جوړ کي و وېناته
په خبرو ئي خو له پري کړه شوور څرمه لوي باباته
«نن دي سقاسنودي وي پورته چي ئي کښېنو و ځلاته
وب دې‌ستړ لره چي ستر شوي، د پوهني لمر به‌ځل کا
دا بابه ژاړه کور کي، بيا څراغ د علم بل کا



که پو هنه علـم نـه وي تنها زور نه په کار يږي
توره ښه ده خـو په علـم بريښ دتورې لاز يا تيږي
بې پو هـنې تـوره هيڅ ده خپلې پلې باندي‌بري کيږي
که دا دواړه دچا مله سي مخ ئي هيڅ واک‌نه ډډيږي
که‌بې تورې ژوند مشکل وي، بې‌پوهنې وجود نشته
که‌و جودوي هم بيکار‌ده، يکښې بو ذره سود نشته






تهیه کوونکی : طالب

سلیمان (لائق)

## وحشي طبع

نه منت د خرابات وهي، نه منه د حرم کړي
څه وحشي طبع لرمه چې له تولو څخه رم کړي
د ملګرو خامي هیلي هغه چاري په ما کاندي
چې تبر يي په غنم کړي حرارت يي به شبنم کړي
زړه مي بس چې د يارانو ځان ځاني آزرده کړي
نه د چا په خندا خاندي نه د چا په غمو غم کړي
د صحرا د سره شفق نه د مجنون پیغام راوسي
په مجنون چې ميني وکړي، هغه چاري په ما هم کړي
پريشان توفان خوځيږي د ليلي د څڼو موج کښې
د ړانه چکاري د اسيلاب به زما د زړه خونه برهم کړي
ګوشمالي د حوادثو هغه چاري په ما کاندي
لکه ګوتي د مطرب چې د رباب په زېر و بم کړي

ساقي مې کړم حسرتونو خاوري شو بوا د ماتو
ورو ترخه پيمانه دا کړه ګوندي وي چې څه مي تم کړي

## لعبتاني د فرنګ

حياده د خصت کړي لعبتانو د فرنګ
لغ لپړه ګرزي شهواني اندام ګلرنګ
ګرمي بازاري د هوس په هر ديار کي
زړونه ځان ته بولي په هيلو او په نيرنګ

## د ترکو استانه

ډير عمر مې تير کي بيهوده په زمانه
ووردي زما سروي او د ترکو استانه
هيڅ مې حاصل نه کړه په شيخي او په تقوي کي
بس له دي مې وارد ي هر چې شي به ميخانه

شيخ و شيخي، وردو و ظيفه وذکر و فکر
زه و ساقي، جام و باده، چنګ و ترانه
زه وزاهد انو ته حيران يم دوي وماته
ديوانه يمه خندودوه په د يوانه

ګنج د عقل ځار شه د عاشق تر ځاځکي او ښو
نه خرواره عقل نه د عشق يوه دانه
تيغ د يار له لاسه په مري د عاشقانو
هسي لذت کا لکه د ميو پيمانه

خداي لره په ورشم په سودا د يار له مخه
بل مقصود مي نشته په کعبه په بتخانه
زه له ډيري ميني په تش بوي د يار شيدا يم
تل د لندو خټواو به لي وي بهانه

څکه زاهد زهد کا ديوه جنت د پاره
سر چندلي نشي په اور بل د جانانه
ګوره د منصور رهسي په دار نشي د رحمانه
مه کړه دا د عشق خبر مستي رندانه

بل نام ونشان د عاشقي نشته د رحمانه
بي نام و نشان شه کي ئي غواړي نشانه

(رحمان بابا)

## داغلي زړونه

ژاړي په غمونو کي خواخوږي له هر چا سره
سل پتنګان سوځي د يوي شمعي ژړا سره
ډک زړه کي له اوښکو ګرځي و ريځي په اسمان کي بې
څه زړه املګري ده دزړونه يوي برښنا سره
قول با غ زړه بدلي څکه اوښکي دي د ګل پر مخ
ډير لګ لاله داغلي زړونه سته صحرا سره
نه ښايي انسان ته چې د بل په غم خمجن نسي
لو يه بدبختي ده که څوک نه ژاړي له چا سره
داسي بيغمي دي خداي په هيڅ کوډ کي پيدا نکړي
بو کوډ کي کښي چې ډيروي او بل خاندي دليلا سره
(الفت)



تهیه کوونکی: احمد «راشد»

د سید عبدالباري لیکنه

# د ځوانانو وظیفې په اجتماع کې

که موږ نن ورځ ځوانان تر ژورې مطالعې لاندې ونیسو نو دا به څرګنده شي چې په ځینو کې د خود خواهي حس ډېر لیدل کیږي چې ددوی د دغې خودخواهي په سبب سره بوه جامعه د اقتصادي، سیاسي او فرهنګي نیمګړتیاوو سره مخامخ کیږي. د نن ورځې ځوانان د سبا ورځې د هیواد په ودانولو کې به روښانه اینده لري. باید ځوانان په خپلو مابینو کې ډېر سره خواخوږي وي او یو بل ته همکاري وي څو ټولای شي د دغه نږدې ... په ذریعه د ټولنې ټولې وظیفې او نیمګړتیاوې په ګډه سره پای ته ورسوي او د هغه ... د ... موسسا ... برابر کړي.



سید عبدالباري

ځوانان باید همیشه تر خپلو شخصي ګټو د ټولنې ګټې په نظر کې ولري او د هغې د ... بادولو په فکر کې وي که یو ځوان خپلې شخصي ګټې نظر د اجتماع د ګټو ته چه و بولي نو موږ باید د دغسې ځوان څخه د هیواد او اجتماع د ودانولو هیله ونه لرو. زموږ په هیواد کې ځینې ځوانان داسې دي چې ځینې بې برخې دي او باید هغه ځوانان چې په علم او زده کړه سره سمبال دي باید

د هغو ځوانانو سره تر زیاتې اندازې کومک وکړي څو دوی هم په علم او زده کړه سره سمبال شي. دا یو دوه چنده ارزښتلی حقیقت دی چې ننورځ د نړۍ هیوادونه د علم

او زده کړې په ذریعه سره خپل اصلي مرام ته رسیدلي دي او پر خپلو مشکلاتو یې بری موندلی دی او خپل اجتماع یې د سمې لارې ته رهنمایي کړېده.

د واقعي ځوانانو وظیفه ده چې د خپل هیواد د ودانولو او لوړولو په لاره کې خولې تویې کړي او لاسونه یو تر بله سره ورکړي څو د هیواد د پرمختګ سبب شي. باید ځوانان نېک اخلاق ولري او د خپل اخلاق په ذریعه سره خلک پر ځان ...

د ټولنې او خپل اجتماع ته په ستره ... کیدونکي خدمتونه وکړي او ددوی د ژوندانه ... ځوانان باید په ټولنه کې د ټولو فاسدو عناصرو سره مبارزه وکړي

څو په اجتماع کې د نا ... ځوانان باید د اجتماع د ودانولو په لار کې خپل توان او قدرت په کار واچوي څو د هغه ... ټولنه ... خلاصه کړي او پر یوه سمه او صحیح لاره یې روانه کړي او د هغ...

سره او ... په هر ځای کې کار وکړي څو خپل ګران هیواد او اجتماع د ... کاروان ته ورسوي. د ټولو روښانفکرو ځوانانو څخه زموږ هیوادنۍ هیله دا ده چې د ... اجتماع د بیارغاونې کار وکړي او خپلې شخصي ګټې پریږدي او اجتماعي ګټې په نظر کې ونیسي.

## د ځمکې کرې په باره کې ځینې معلومات

۱- عمر د ٤ ملیارده او ٥٠٠ ملیونو کلو په شاوخوا کې دی

۲- د ځمکې مساحت ٥١٠١٠٠٠٠٠ کیلو متره مربع چې په سل کښې ۷۱ اوبه او په سل کښې ۲۹ وچه ده.

۳- د ټولو اوقیانوسو مساحت ۳٦۱،٥ ملیونه کیلو متره مربع ته رسیږي.

٤- د ټولو وچو مساحت ۱٤۸،٦ ملیونه کیلو متره مربع دی.

٥- د ځمکې حجم ۱۰۸۲۸٤۱۳۱۰۰۰۰ کیلو متره مکعب دی

٦- د ځمکې وزن د ٦ کادرلیون ټنو په شاوخوا کښې او مخصوص وزن یې ٥٢، ٥ دی.

ژباړونکی: خالقي

# د ټولنې په مقابل کې د ځوانانو وظیفې

۱- د یوې ټولنې په مقابل کې د یوه پوه ځوان وظیفه دا ده چې د علم او معرفت د پلاس راوړلو د پاره په ټول بشري توان او قدرت سره چې لري یې خپل کوښښ او زیارونه سیموي، څکه په لومړۍ مرحله کې د ټولنې حیاتي اړتیا علم او معرفت دی.

۲- پوه ځوان باید ډېر بیت د مزایاوو، په سلوک او پوره اخلاقي صحیح څخه برخوردار وي، هر کله چې د دغو صفتونو په هکله چې د بشري افرادو د هر فرد د اړتیا وړ څخه دي په خپل ځان کښې کوم نقصان ووینې نو تر هر شي د مخه باید دغه ناوړه عارضي خالیګاه د ښو اعمالو په فضایلو سره ډکه کړي او کمبودې پرې نږدي.

۳- ځوان باید په هر کار او وظیفه کې چې پوخت وي د حرص، تن پرورۍ، بې انصافۍ او خلکو خطا ایستلو او په سلوک کې سل برخې خپلې ګټې په نظر کې نیولو او ناروا استفادې څخه ځان وژغوري.

۴- هر ځوان باید د ګذشت فداکارۍ او د خلکو سره د همکارۍ د روحیې درلودونکی وي خپلې شخصي ګټې د ټولنې پر ګټو ترجیح ورنکړي. ټول وخت د خلکو د آرامۍ او د هېواد د پرمختګ غوښتونکی وي.

۵- د سختیو په مقابل کې د مقاومت او تحمل د خرافاتو په مقابل کې د مبارزې، د مشکلاتو او موانعو د لیرې کېدو په باب د ټینګښت عزم او ارادې څخه برخوردار وي څو په دې ډول پر ځوان وکولای شي چې خپل هدف ته ورسیږي.

۶- پوه ځوان باید د فداکارۍ، ښو کارونو، افغاني غیرت او هېوادپالنې پوسمبول او نمونه وي او همیشه په ښه ډول تواضع سره د ټولنې مشرانو ته قدر په سترګه وګوري او کوچنیان د شفقت او مهربانۍ څخه بې برخې نه کړي او د هر چا سره د متقابل احترام پالنه وکړي.

۷- پوه ځوان ته لازمه ده لومړی د خپل ځان څخه اصلاحات شروع کړي د خپل ځان، دوستانو او قریبانو او لیرې نژدې منسوبینو تر اصلاح کېدو وروسته باید انتقاد کړ نه پیله کوم غرض څخه د یوه خاص صمیمیت د روبه نورو کسانو ته ونیسي څو په دغه صورت وکولای شي اصلاحات منځ ته راوړي او د بدیو چاره وکړي.

۸- ټول ځوانان باید د خپلو نیکه ګانو د نیکو او ګټورو افکارو څخه پیروي وکړي او هم هر ځوان باید د خپلو نیکه ګانو او پخوانیو کسانو نیکې لرم په ښه ډول وساتي. او هم باید د اصیلو او نوو وتمو لاتو څخه استفاده وکړي.

۹- ځوانان باید د تقلب، د رنګ، ریاکارۍ اسراف او ناوړانی تقلید څخه متنفر وي.

۱۰- ځوانان باید کوښښ وکړي چې د ټولنې د یووالي او اتفاق مقدس مرام د پلاس راوړلو د پاره زیار او زحمت وکاږي هیڅکله بې هیله دا نه دي چې په ټولنه کې یووالی او اتفاق ورک سي.

همدا راز ځوان ته لازمه ده د نژادي، ژبني او مذهبي تبعیض څخه ځان وژغوري او دې ته موقع ورنکړي چې د ټولنې د خلکو په منځ کې دغه شیان منځ ته راشي.

۱۱- د ټولنې او ملي دستګاوو کې د یوه ځوان کار او خدمت باید د هېواد او ملت د آرامۍ او هوساینې په غرض دی نه دا چې دی دا کار او خدمت یوازې او یوازې

(پاته په ۲۹ مخ کې)

۷- د ځمکې قطر د استوا د خط څخه (۱۲۷۵۵) کیلومتره او د قطبو د (۱۲۷۱۲) کیلو متره دی.

۸- د استوا خط ۴۰۰۷۶ کیلو متره او د ځمکې د نصف النهار اوږدوالی ۴۰۰۰۳ کیلو متره دی.

۹- د ځمکې منځنی شعاع ۶۳۷۰ کیلومتره ده.

۱۰- د ځمکې ډېره لوړه څوکه د اوریست څوکه ده چې ۸۸۸۵ متره اوچته ده او ډېره کښته نقطه ای د المیت د بحر په غاړه کښې چې ۳۹۱ متره او د دریابو کښته نقطه په آرام اوقیانوس کښې د فیلیپین مجمع الجزایر ته نږدې د ۱۱۵۲۱ مترو په شاوخوا کښې عمق (ژوروالی) لري.

۱۱- د ځمکې منځنی فاصله د لمر څخه ۱۴۹۶۴۵۰۰۰ کیلو متره ده.

۱۲- د ځمکې منځنی فاصله د سپوږمۍ څخه ۳۸۴۴۴۶ کیلومتره او د نصف النهار د یوې درجې اوږدوالی ۱۱۹، ۱۱۱ کیلو متره دی.



تهیه کوونکې: پېغله سکینه نوري

# له هرې خوا

د بابل دېوال: دغه دېوال ۲۵ متره قطر او ۱۵ میله اوږد والی او ۱۲ برجه لري، او د بابل د پاچا بخت النصر په امر سره د بابل د ښار پر شاوخوا ووهل سو.

د اقصی مسجد: د سلیمان (ع) په امر سره په فلسطین کښې جوړ سوی دی. دغه عبادتګاه ۶۵ ګزه اوږد والی ۲۵ ګزه عرض، شیشکه ئې ۶۲۵ ګزه او ۱۲۵ ګزه لوړوالی ئې درلود چې د (۵) زرو کارګرو په واسطه په ۵ کاله کښې جوړ سو دغه لوی معبد اوس یهودیانو اشغال کړی دی.

د اکباتان دېوال: د اکباتان دېوال اوه دېواله د وی کنګرې سره یو د بل په منځ کښې وه چې د اکباتان ښار ئې په بر کښې درلود. د ذکر سوو دېوالو هر یوه بیل بیل رنګ درلود.

د چین دېوال: دغه دېوال د چین د امپراطور (سی هوانګ) په اجازه د مغولستان او چین تر منځ په اتلسو کلو کې د ډېر شمیر کارګرو او جنګي بندیانو په واسطه جوړ سو.

د چین دېوال ۶ متره لوړ او دوه زره کیلو متره اوږد دی.

## تر اسلام وروسته بیل بیل مذهبونه

به آفرید: د خراسان ابومسلم په وخت کې یو سړی چې (به آفرید) نومیدی او د فرودین زوی ؤ یو مذهب ئې راووړ او ده لمونځونه ئې د خپلو اتباعو د پاره فرض کړه او د خپل مذهب اساس ئې د توحید او اعتقاد پر اساس او د لمر پر عبادت بنا کړی. مقصد د ده مذهب د اسلام د آئین او د زردشت د آئین څخه مرکب ؤ. د ده پیروانو ته ئې د «به آفریدیه» لقب ور کړی ؤ.

سنباد مجوس: دی د خراسان ابومسلم د طرفدارانو څخه و چې د ده تر وژلو وروسته ئې علم طغیان راوپاراوه. که څه هم سنباد نوی آئین منځ ته را نه وړ. او په مجوس مشهور ؤ او د ده د اعتقاد پر ابومسلم ته معلوم نه ؤ سره د دغه هم د بیلو بیلو مذهبو پیروان د ده تر بیرغ لاندې راغله. سنباد د نیشاپور څخه راووت (قم) او (ري) ئې فتح کړې او لښکر ئې چې د سل زره تنو ته رسیدله، مزدکیانو او شیعه څخه مرکب ؤ سره د اخوا ئې کړل ده شورش دوه پاینت ونه کړ په پای کښې ونیول سو او په (۱۳۷ هق) کښې ووژل سو.

## ننني افغانستان پخوا په کومو نومو یادېدی؟

افغانستان په پخوانیو دورو کښې د آریانا په نامه او د اسلام د ظهور په وخت کښې د خراسان او د دراني احمدشاه بابا د پاچهۍ په وخت کښې د پښتونخوا په نامه یادېده. د افغانستان ننني نوم چې زموږ د هیواد ملي او رسمي نوم دی د ۱۹۰ پېړۍ را پدې خوا ور ته کارول شوی دی.

# دنړی څو مهم بندرونه

| د بندر نوم | مربوط هیواد | جغرافیائی موقعیت |
|---|---|---|
| یوکوهاما | جاپان | د آرام اوقیانوس پر غاړه |
| تریست | یوګوسلاویا | د ادریاتیک » » |
| یالتا | روسیه | د تور درباب » » |
| هامبورګ | المان | آلبه درود » » |
| ناپل | ایټالیا | د مدیترانی » » |
| نانکینګ | چین | د ژوته کیانګ » » |
| نیویارک | امریکا | د اوقیانوس اطلس » » |
| ملبورن | استرالیا | د آرام اوقیانوس » » |
| میلان | ایټالیا | د مدیترانی د دریاب » » |
| لیننګراد | روسیه | د بالتیک د دریاب » » |
| لوهاور | فرانسه | د رودسن » » |
| لیورپول | انګلستان | د مرسی درود » » |
| کازابلانکا | مراکش | د اوقیانوس اطلس » » |
| کراچی | پاکستان | د عمان دریاب » » |
| کلکته | هندوستان | د ګنګا درود » » |
| نوشچو | چین | د لوی اوقیانوس » » |
| فیلادلفیا | امریکا | د اوقیانوس اطلس » » |
| بیروت | لبنان | د مدیترانی د دریاب » » |
| بیزرت | تونس | د مدیترانی د دریاب » » |
| دوبلن | آیرلند | د مانش د دریاب » » |
| لزبن | پرتګال | د اوقیانوس اطلس » » |
| بارسلون | اسپانیا | د مدیترانی د دریاب » » |

# د انسان د بدن په باره کښی معلومات

د انسان بدن د ۲۰۸ هډوکو څخه جوړ شوی دی او د ۱۶۰۰ بندو په واسطه یو د بل سره یو ځای شوی دي. د بدن د هډوکو جوړښت پر درو برخو ویشل شوی دی. د سر هډوکی، تنه، لاس او پښی. د سر هډوکی د ججمی د (سر د کوپړی) او مخ د هډوکو څخه عبارت دی چې ۱۲ بې حرکته هډوکی او یو متحرک «حرکت کونکی» هډوکی څخه جوړ شوی دی.

د تنی هډوکی د ستون فقرات (شمزی) د شمزی مهری، پښتی، د اوږو هډوکی او لګن خاصری څخه عبارت دی.

# په چین کی د کاغذ باد الوزولو بندیز ونه

کاغذ باد الوزول د اوسنی چین د جمهوریت په تاریخ کی اوږده سابقه لری او په دی وروستیو وختو کی ژیات رواج پیدا کړی دی حتی د پیکنګ او سیدونکی خارجیان په ډیر شوق کاغذ بازی کوی. خو د پیکنګ دنیا الګیرا یشو دلوادری د دغه مقصد د پاره ځینی بندیزونه لګولی دی.

په لرغونی چین کی کاغذ باد الوزول د خبیثه ارواحو په ډول تعبیر بدل او کله چی به کاغذ باد وشکیدی نو دوی داسی ګمان کاوه چی کاغذ باد خبیثه ارواح له هغه محل څخه د خانه سره یو وړه.

افلاطون

اصلی نوم ئی «اریستوکلس» دی د یونانی یونان د یوهانو او فلاسفه څخه و. ۴۲۷ کال تر میلاد د مخه په آتن کښی زیږیدلی او د میلاد د مخه په ۳۴۷ کال ئی د نړی څخه سترګی پټی کړی دی. افلاطون د «مدینه فاضله» تیوری منبع ته را وړی ده مدینه فاضله یو خیالی ښار دی چی د هغه خلک د فلاسفه او پوهانو تر حکومت لاندی خوشحاله ژوند لری. اثار ئی: جمهوریت، فدر فدون، ګورجیاس، د میلستیا قوانین، مکالمی، او سوفسطائی دی.

# د میوند ولسوالی

## د میوند تاریخي سیمه په دغه ولسوالی کښې ده

### د میوند تاریخي سیمه:

میوند د کندهار لویدیځ ته یوه ولسوالي ده چه پخوا «د کشکنخود» په نامه یادیده.

څو ځکه چې د میوند تاریخي سیمه دلې پرته ده او په همدغه کښې په ۱۸۸۰ عیسوي کال کښې د افغان او انګلیس د وهمه جګړه وشوه او پښتنو تر ډېرو قربانیو وروسته دا جګړه وګټله او

زموږ په ملي تاریخ کښې د میوند، او د میوند د قهرمان سردار محمد ایوب خان

او د میوند انګیالی او توریالي پښتنی ملالۍ او نور تر اوسه ژوندي اوسني او دا تلونکي نسلونه

بري ویاړي او د دغې ولسوالۍ نوم په میوند وانښت.

### د ولسوالي موقعیت:

د میوند ولسوالي د کندهار د لویدیځ په اویا کیلو متری کښې پرته او مرکز یې د چل ګزي په سیمه کښې دی.

د شمال خوا ته یې د غاکریز ولسوالي او د خود کې علاقه دي، د جنوبي اړخ ته یې ریګ پرته دی لویدیځ ته یې د هلمند د نهر سراج ولسوالي او ختیځ ته یې د پنجوایي او ارغنداو ولسوالي موقعیت لري.

### د ولسوالي نفوس:

که څه هم زموږ د نفوسو صحیحه احصائیه تر اوسه نه ده اخستل شوې خو ویلای شو چې د میوند په ولسوالي کښې شل زره تنه اوسي او اوسیدونکي یې پښتانه او په خاصه توګه نورزي،

اسحقزي، محمدزي، بوپلزي، الکوزي او اڅکزي دي.

### مهم کلي او کاریزونه:

د میوند د ولسوالي مهم کلي او کاریزونه دا دي:

د میوند لوی کاریز، د چل ګزي کاریز، کاریز ګک، د سردار ګل محمد خان کاریز د سدوزو کاریز، د محمد مسیح کاریز، د پیرزاده کاریز د خواجه خالق کاریز، حسن آباد د میرا خور سنګک، حصار، بند تیمور کرمابک، میوند، عشق آباد موچه، کلای شامیر، دوآب چارشاخې نهر کاریز کلی او داسې نور دي.

### کرنه او فلاحت:

په دغه ولسوالي کښې په ژمي او پسرلي کښې باران نو نه اوري او په ځینو ځایونو کښې یې واوره هم کیږي.

یوه زیاته برخه یې کاریزونه دي او د ارغنداو رود چې د پنجوایي څخه تیر شي نو د میوند د ولسوالي ځینو لویو کلیو ته د ارغنداو اوبه ورکوي او وروسته له دغې سیمې څخه د ارغنداو رود د بست په برخه کښې په هلمند کې پریږي.

د میوند په ولسوالي کښې غنم، اوربشې، جوار، او پنبه کرل کیږي، د انګورو، زردالو، مڼې، انځر، او انارو میوې یې پکښې اخستل کیږي خټکي او هندوانې پالیزونه هم پکښې شته، باغوان ته د حاصلاتو پنځمه برخه ورکوي او هر کله چې په پسرلي ښه باران نو نه وشي او سیلاوونه راشي نو کاریزونه یې زیاتې اوبه لري.

«۲۴ مخ»

دو لسوالۍ په مرکز کښې
چه کانکریټي لوی سړک تېر
شوی دی یو شمېر پخې
ودانۍ یکښې جوړې شوې او
پوچنۍ بازار هم لري او د کابل په
لوري .

خلک ئې پښتانه ، اوزګړي
او ډېر لږ ئې هم ساتي او
د غو مالونو ډلې خپله ګذاره
کوي .

### د شهیدانو لویه هدیره :

د میوند د ولسوالۍ د مرکز
د شمال په لور لس کیلو متری
کښې د افغان او انګلیس د
نومي تاریخي جګړې د شهیدانو
لویه هدیره پرته ده او زیات
خلک د هغو زیارت ته ورځي او
مرحوم محمد ګل خان مومند
چې د کندهار تنظیمیه رئیس و
په ۱۳۱۳ کال کې په دغه تاریخي
سیمه کښې چې لویه جګړه د لته
پېښه شوه د میوند د شهیدانو
یادګار جوړ کړ او اوس هم
شته .

### نامتو شخصیتونه :

د شهیدانو د هدیرې شخه
دو کیلو متر لیرې ځنیځ پلو ته
سلطان محمود غزنوي د نامتو
وزیر خوا جه احمد میوندی
زیارت دی او ډېر پخواد میوند
په لوی کلي تر ځنګ خلکو پر
هغه لار کندهار ، لښکرګاه
او نورو سیمو ته تګ راتګ
کاوه .

د نورحانی شخصیتونو څخه
ئې یو هم ګودڼیکه دي چې د بند
تیمور په سیمه کښې ئې زیارت
او خلک ډېر میلې په دغه زیارت
کښې کوي .
د شاه سید محمد آغا زیارت
د عزیز آباد په کلي کښې
دی .
په اوسنیو شخصیتونو کښې
یو هم د ملي دفاع وزیر ستر
جنرال خان محمد د میوند د
لسوالۍ دی .

### دودونه او خویونه :

د دغې ولسوالۍ خلک
د کندهار د نورو ولسوالیو د
خلکو په څېر دودونه او خویونه
لري ، د پېغلو ولور ئې له لسو
زرو افغانیو څخه تر اویا زرو
افغانیو پورې دی او د پاتامر اسم
هم زموږ د نورو سیمو په شان
دی .
خلک ئې په ودونو کښې
اتڼونه کوي غیږې باسي غزلې
وايي د توپک ډزې کوي ، په
میلو کښې هګۍ جنګول
کیږي .

### د میوند ولسوالۍ ...

د حفظ مراقبت یوه ښکلې
ودانۍ ئې مرکز ته نږدې او د صحي
مرکز یوه ودانۍ هم یکښې ودانه
شوې ده .
هیني نړۍ کښې والي ئې
برغولتیو او س هم معلوم میږي
داسې اټکل کیږي چې دا تاریخي
کلاوې پخوانۍ د لوی سکندر د
وخته څخه وي .

په دغې ولسوالۍ کښې یو
شمېر د ډېول ودانۍ ، داو یو
بمبې هم په کار لویدلي او خلک
ئې د کرونديد پاره د ترا کتورو نو
څخه هم کار اخلي .
د محکمو او ستې مالیه ئې
پنځه سوه او پنځوس زره
افغانۍ ده .

### د پوهنې چارې :

د دغې ولسوالۍ په مرکز کې
یو منځنۍ ښوونځی د غازي
محمد ایوب خان په نامه شته
چې پوخ او اساسي تعمیر لري
د زده کوونکو شمېر ئې ۳۱۱ دی
او ۲۲ تنه زده کوونکي ئې تدریس
کوي .
د میوند په کلي کښې یو
ابتدائي ښوونځي لري چې د
زده کوونکو شمېر ئې ۱۶۹ تنو ته
رسیږي او ۱۲ ښوونکي درس
ورته وائي .
په میوند کښې نور کلیوالي
ښوونځي شته چې یو ئې په ګرماوک
کې دی معلمه ښوونځی ، بل ئې
په شیله کې دی معلمه ښوونځی
دریم ئې د مالي خیل دوه معلمه
ښوونځی ، څلورم ئې د ملا ابراهیم
نیکه دی معلمه ښوونځی ، پنځم ئې
د مس کاریز یو معلمه ښوونځی
شپږم ئې د چار باغي یو معلمه
ښوونځی ، اووم ئې د نهر کاریز
یو معلمه ښوونځی ، اتم ئې د
شاهي قنات یو معلمه ښوونځی
او نهم ئې د کلاي شامیر یو معلمه
ښوونځی دی .
د ټولو کلیوالي ښوونځیو
د زده کوونکو شمېر ئې ۴۷۸
تنو ته رسیږي .

# ورځنۍ علمي اصطلاحات

آپارتمان: داسې یو ودانۍ ته ویل کیږي چې په یو ستمیر پوري مربوطوي اما دهغه څه جلا او فقط د ارونکي دخو کوټوي.

آتمسفیر:- داو بو دبخاراتو او هوا طبقه چې مشکه ئې ګرداګر احاطه کړیده، آتمسفیر ورته وایه‌شي.

آرټیست:- یعنې هنرمند او اکثر هغه څوک چې دکوم صنایع او نقاشي او یا موسیقۍ استادوي هم آرټیست ورته ویل کیږي.

آماتور:- شوقي، هغه څوک چې کوم کار یا هنر په خپل شوق ترسره کوي، نه د پیسو او مزد په خاطر.

افسر:- هغه څوک چې کوم لښکر او یا افرادو ته قومانده ورکوي.

اټوم:- دمادې هغه کوچنۍ ذره ده چې ترهغه بله کوچینۍ ذره نه شته.

الجی:- داسې نباتات چې داو بو په موجودیت کښې ژوند کوي او اکثر آبو حجروي وي.

اتروپن:- یو داسې مرض دی چې ژر د یوه ځای څخه و بل ځای ته نقلیږي.

انفلوئنزا:- انفلوئنزا هم یوه ساري ناروغي ده دیر وخطر ناکو ناروغیو څخه ده ددې ناجوړۍ علت د هوا د حرارت نا بیره تغیر دی.

امپریالیزم:- هغه ډول حکومت ته ویل کیږي چې غایه ئې د کوچینیو ملتونو استثمار وي او د یوی لوی امپراطورۍ د تشکیل دپاره هلې ځلې کوي.

امپیر:- د بریښنا د جریان د شدت واحد دی.

ایډیالیزم:- د خیال پروري او خیال پردازی مکتب ته ویل کیږي په دې مکتب کښې هرشي پر تصور بانډې بناوي او مادي او تجربي ته چندان اهمیت نه ورکوي.

الکترون:- داټوم دهستې پرشاو خوا بانډې څیني کوچنۍ ذرات ګرځي او د برق ډېر کوچنۍ منفي چارج لري.

الکتروتراپي:- د برق په واسطه سره د ناروغانو معالجې ته الکتروتراپي ویل کیږي.

انتراپولوجي:- بشر پېژندنه او دانسان طبیعي تاریخ ته انتراپولوجي وائي.

اسپرماتو زوئید:- د حیواناتو نطفې ته اسپرماتو زوئید و یل کیږي البته د نر حیوان.

انټرنیشنل:- جهاني، بین المللي

انستیتوت:- موسسه انجمن او یا علمي او ادبي هیئت ته ویل کیږي.

اریستوکراسي:- (اشرافیت) داسې حکومت دی چې داشرافو دخوا څخه پر عوامو بانډې په زور او ستم تحمیل کیږي دغه ډول حکومتونه په منځنیو پیړیو کښې زیات لیدل کیده.

ائتلاف:- ددو لتونو او حزبونو اتحاد یې ته چې دیوه ګډهدف دپاره سره یو ځای سوي وي ائتلاف ویل کیږي.

اقتصاد:- د تولید او توزیع قانون اقتصاد بالله‌شي.

اتشه:- دسفارت هغه کار کونکي ته چې یو خاص ماموریت ولري اتشه وایه‌شي.

اګریمان:- یعنې قبلول او رضائیت او یاد کوم بیګانه دولت د سفیر سره موافقې ته هم اګریمان ویل کیږي.

انارشیزم:- هغه ډول مکتب ته ویل کیږي چې قانون پکښې اهمیت نه لري غایه او هدف فساد او ګډوډي وي.

انارشیست:- هغه څو ک چې په مملکت کښې ډېموډنې او فساد جوړوي او غوښتونکر وي.

انټرکټ:- په ډرام کښې ددوو پردو ترمنځ فاصلې ته ویل کیږي چې عموماً په دې ضمن کښې دتماشا چیانو دخستګي د رفع کولو دپاره څیني فکاهیات او دول کیږي او یا د موسیقۍ کومه پارچه ورته اوروي.

اولیتماتوم: یوه دیپلوماټیکه اصطلاح ده چې لاتیني لفظ دی او دوروستي معنی لري او دا یوه قطعي خبره ده

اعتیاد: ـ طب د ګاه څه هغه عمل ته اعتیاد ویل کیږي چې که ترک شي په بدن کښې د هغه مضره اثار پیدا کیږي لکه د سګریټو عمل.

ارګون: ـ یو بې رنګه او بې بویه غاز دی چې هیڅ کیمیاوي فعالیت نه لري او د برق او روښنائي په څېنو څراغونو کښې استعمالیږي.

ایډیالوجي: ـ علمي فکر او نظریه، او یا داسې مفکوره چې و یوې طبقې او یا ډلې ته منسوبه وي.

اتنوګرافي: ـ د انسانانو د نژاد پېژندنې علم ته ویل کیږي.

بیولوجي: ـ د ژوند علم او یا د ژوندیو موجوداتو د عجیبو ته هم بیالوجي وائي.

بربریت: یعنې د وحشت او توحش معنی لري دا اصطلاح و هغه قوم ته منسوبیږي چې هغوی تراوسه پورې د تمدن وساحې ته ځان نه دی رسولی لکه د افریقې د ځینو منطقو انسانان.

بیوګرافي: د یوه چا د ژوند تاریخ ته بیوګرافي ویل کیږي.

پانسیون: هغه ډول مهمانخانې ته ویل کیږي چې و میلمنو ته خوراک او پوښاک ورکول کیږي مګر کرایه ئې د میاشتې یا هفتې له پاره نیسي.

پرولتاریا: یعنې د کارګرو طبقه او یا هغه طبقه چې زحمت کاږي پرولتاریا ورته وایه شي.

پاتریوټ: هغه شخص ته ویل کیږي چې په خپل وطن فخر کوي او خپل ځان وطن ته د خدمت په لار کښې وقف کوي.

پاتریوتزم: د وطن پرستۍ مسلک دی چې پاتریوتزم ځینې وخت د ملت دوستۍ پر ځای هم استعمالیږي.

پارلمان: د دولت د دري ګونو قوو څخه هغه قوه ده چې قانون تدوینوي. چې د پارلمان رئیس د صدراعظم او د پارلمان غړي د هغه د کابینې حیثیت لري.

پلاتونزم: د هغه فلسفې او مکتب نوم دی چې و افلاطون ته منسوب دی.

پلوتوکراسي: هغه ډول حکومت ته ویل کیږي چې د یوه ډېر بډای شخص په واسطه اداره کیږي ودې ته د اغنیاؤ حکومت هم ویل کیږي.

تو نیکرات: یو نوع غذي ده چې څو کاله بې غذا او یو ژوند کولای نه شي نو په دې مدت کښې یو اځې د هوا څخه استفاده کوي.

تروریزم: دا یوه سیاسي عقیده ده چې قتل، وحشت او ترور پکښې روا ګڼل کیږي.

تیراژ: د ورځپاڼو او مجلو هغه اندازه چې په یوه وخت کښې چاپیږي.

تیوکراسي: هغه ډول حکومت یا رژیم ته ویل کیږي چې قدرت د روحانیونو په لاس کښې وي.

جنټلمین: سنګین او د عزت خاوند سړي ته جنټلمین ویل کیږي.

جیپ: هغه ډول موټر دی چې ابتدا کانګ ئې چالاک وی او په ناهموارو ځمکه باندې په چلیدا ئې شي.

چک: حواله یا داسې سندوي چې د هغې په وسیله د بانک څخه پیسې اخیستل کیدای سي.

ډیپلومات: سیاست مدار سیاست دان.

ډیپلوم: شهادتنامه.

ډیپلومه: هغه څوک چې د رلوونکی د کومې شهادتنامې دي.

ډیش: و داسې غاب ته ویل کیږي چې ډېر لوی وي او ومنځ ئې ژور وي.

ډیزانټري: خونې اسهال یا پیچ ته ډیزانټري ویل کیږي.

ډیفتري: یو ډول خطرناکه ناروغي ده چې د ستوني په حصه کښې پیدا کیږي.

ډینامومیټر: هغه آله ده چې قدرت او قوت ور باندې اندازه کیږي.

ډموکراسي: دد رو یونانې لغاتو څخه ترکیب شوې ده یعنې د خلکو حکومت. دا هغه ډول حکومت دی چې قدرت د خلکو په لاس کښې وي او خلک د خلکو د پاره کار وکړي.

ډینامیټ: یوه ترکیبي ماده ده چې د انفجار او چاودېدلو قابلیت لري.

دادائیزم: یو ادبي مکتب دی چې د تربستان تزاره په واسطه په ۱۹۱۵ کښې د ژوریخ په ښار کښې آساس کیښود مګر دادائیزم ته د یوه منفي جنبې په درلودلو سره ادبي مکتب نه شو ویلای ځکه دا مکتب ټوله ادبي سبکونه نفي کوي او ویلای شو چې دادائیزم یو اعتراض او عکس العمل دی د نورو ادبي مکتبونو په ضد.

ډیپارټمینت: ایالات. شعبه

ډټرمینزم: د جبر فلسفي مکتب ته ډټرمینزم وائي.

ډفیله: یو فرانسوي لغت دی چې مونږ هغه د رسم ګذشت په معنی تعبیروو مخنۍ و رته رژه او یا شاخزهم وائي.

ډسپوتزم: هغه حکومت ته وائي چې پر ظلم او استبداد باندې بنا وي.

ډماګوجي: د خلکو غطا ایستلو ته ډماګوجي ویل کیږي.

ډیابیټ: د شکرې مرض د ډیابیټ په معنی دی او هغه څوك چې بدغه مرض مبتلا وي هم د ډیابیټ په نامه یادوي.

ډسیپلین: (انضباط)

ډاروینزم: د چارلس ډاروین د فرضیو مکتب ته ویل کیږي چې د حیواناتو او نباتاتو د تکامل څخه بحث کوي.

دیکتاتور: دیکتاتور یعني ظالم او مطلق العنان، په اصطلاح د قوم هغه رئیس ته ویل کیږي چې پر خلکو باندې په زور او جبر حکومت کوي او فقط خپل عقیده او نظریات عملي کوي وبس.

دیکتاتوري: داسې ډول حکومت دی چې د ملت سر اوښت د یوه ظالم او دیکتاتور په لاس کښې وي.

ریالزم: ریالزم د واقع پرستۍ په معنی دی او دا مکتب د ایډیالزم په مقابل کښې قرار لري و دې مکتب ته یو ادبي مکتب هم ویلای شو چې مؤسس ئې ماکسیم ګورکي د شوروي نامتو لیکوال دی.

راسیونالزم: د اصالت فلسفي ته وائي د دې مکتب پیروان و عقل ته پر احساساتو باندې ترجیح ورکوي او عقل برتره بولي.

راډیوتراپي: د ایکس په اشعه باندې د یوه مرض معالجې کولو ته راډیوتراپي ویل کیږي.

رفرنډم: عمومي رایه ګیرۍ ته رفرنډم وائي.

راډیواکټیو: هغه عنصر چې د رلوونکي داقومي تشعشعاتو وي راډیواکټیو بلل کیږي راډیواکټیو هغه عناصر دي چې د دوی اتومونه تجزیه کیږي شعاوي او ذرات خپروي لکه راډیوم او یورانیوم.

رفورم: رفورم یعني اصلاحات داسې اصلاحات چې انقلاب لازم ورته نه بولي.

سیټو: سیټو یو دفاعي تړون دی چې په ۱۹۵٤ کښې د ځینو غربي او شرقي ممالکو ترمنځ وشو او مرکز ئې د بنکاك ښار دی.

سټوډیو: د عکاسۍ اتاق، او یا د ځینو پروګرامونو د ترتیب کولو اتاق ته هم سټوډیو وائي.

سادیزم: یو ډول انحراف دی چې سادیست شخص یعني هغه نفر چې منحرف وي د نورو اشخاصو د آزارولو څخه لذت اخلي.

سیکالوجي: د روحیاتو علم، او یا روانشناسي.

سویچ: یوه داسې آله ده چې د هغه په واسطه په یوه ماډې کښې برق جاري او یا قطع کوي.

طاعون: یو ډیر خطرناکه او مهلکه مرض دی د غه مرض کولای شي په چې ملیونو انسانان په ډیر لږ وخت کښې تلف کړي دا مرض د کیکو په واسطه د یوه ځایه و بل ځای ته نقلیږي.

فیزیولوجي: د انسان د اعضاو د تشریح علم ته فیزیولوجي ویل کیږي.

فوټون: ډیره کوچنۍ او ممکنه ذره ده چې نور او انرژي ده.

فاول: د انفلونزاد ناروغۍ هغه دوهم قسم میکروب دی چې د چرګو او چرګانو په واسطه سرایت کوي او دا مرض د لمړي وار د پاره په ایټالیه کښې کشف شو.

فټي شیزم: فټي شیزم یو دین دی چې په ډیرو قدیمو زمانو کښې ئې رواج درلود.

فدراسیون: د څو مملکتو او یا څو سازمانو و اتحادیې ته فدراسیون وائي.

فیلډمارشال: په عسکري کښې آخرینه او لوړه ترینه رتبه والاعسکر ته فیلډ مارشال ویل کیږي.

کاپټیال: د سرمایه داري سیستم کاپیتال دی او کاپیتالیستي هغه ممالك دي چې د سرمایه داري نظام پکښې مستقر دی.

کاریکاتور: خنده آوره تصویر او یا مضحك شکل ته کاریکاتور وائي.

کودتا: د عسکرو له خوا ناببره قیام او توطئه چې د مملکت د رژیم او یا حکومت د لغوه کیدو د پاره کیږي.

کلینیك: اصلاً یو داسې ځای ته ویل کیږي چې طبي پرابلمونه پکښې مطرح کیږي او یا ځینې طبي عملیات پکښې کیږي مګر په عامه اصطلاح کښې د ډاکټرو معاینه خانې ته هم کلینیك وائي.

کالوري: دقدرت او حرارت واحد دی.

کلاسیزم: یو ادبي مکتب دی چې په دې سبک کښې هنرمندان او شاعران د پخوانی شکلو آثارو پیروي کوي.

مرجان: یو ناخالص کلسیم کاربونات دی چې د ځینو بحري حیواناتو په اسکلیټو کښې پیدا کیږي.

مترس: هغه ښځه چې په نکاح شوې نه وي مترس ورته ویل کیږي او یار فیقې او معشوقې ته هم مترس وائي.

میوپ: یعنی نزدیکه بین هغه څوک چې د لږ دي لیدونکو سترګو خاوند وي.

میکروب: ذره بیني ذیروح (ژوندي موجودات) دي چې لیدنه ئې په سترګو غیر ممکنه ده، د حیواناتو او نباتاتو کښې په پارازیتي ډول ژوند کوي.

ملت: دو ګړو هغه ډلې ته وائي چې په یوه خاوره کښې راټول شوي او د یوه دولت تر سلطې لاندې اداره کیږي، مشترك آداب، رسم او رواج او تاریخي سابقې ولري.

مازوشیزم: دغه هم یو ډول انحراف دی چې د سادیزم ضد یا عکس دی یعنې منحرف شخص د خپل ځان د آزارولو څخه لذت اخلي.

میلیټاریزم: یو سیاسي عقیده ده چې نظامي او عسکري حکومت لازم بولي او قدرت باید د نظامي افرادو په لاس کښې وي.

منرال: منرال داسې ماده ده چې کومه نباتي او حیواني منشاء ونه لري او د ډبرګې په تشکیل کښې برخه لري.

نیوترون: د مادې ډیره کوچنی ذره ده چې د اتوم هسته تشکیلوي او داسې ویل شي چې نیوترون فاقد د کوم برقي چارج دی یعنې خنثی حالت لري.

نیوراستني: یعنې عصبي ناروغي او کسالت د اعصابو د قوې ضعف ته هم نیوراستني ویل کیږي.

نیوروز: د عصبي سلسلې اختلال ته نیوروز ویل کیږي او یا د عصبي کنترول مختل کیدو ته نیوروز وائي.

نارکوټیک: مخدره او خوب راوستونکي دوا نارکوټیک بولي.

نارکوټین: د تریاکو د الکوئیدو څخه دی چې زهري خاصیت ئې لري.

نت: د موسیقي مخصوصه الفباده چې د ښو او علامو څخه مرکبه دی.

ناټو: یو دفاعي تړون دی چې د اپریل په ٤ په ۱۹٤۹ کښې د ځینو غربي ممالکو تر منځ لاس لیك شو.

یونیفورم: یعنې متحد الشکل او یو رنګه لباس، عسکري لباس هم یونیفورم دی.

---

د ۲۱ مخ پاته

## دځوانانو وظیفې...

دخپل ژوند او کورنۍ د کړاوي دباده وکړي، او خپل د هیواد خلک ځینې هیر وي.

۱۲- ځوان ته لازمه ده چې نصیحت واوري او پند ځنې واخلي.

ځکه چې یو ځوان ټول کاروته پخپل سر اجرا او دنیای څخه بې خبره وي.

۱۳- په دیني اوامرو او اسلامي شعایرو باندې باید یو ځوان پابندي ولري او د مور او پلار او حق دارانو د نصیحت پیروي په ښه ډول باندې خوښ وي. ځو په دې صورت یې د دواړو جهانو بریالی توب تر لاسه کړی وي.

۱٤- ځوان باید د عمل او پښکار قوه ولري یعنې په ښه ډول خپل ورسپارل سوې وظیفه په خپل وخت سرته ورسوي.

۱٥- هر ځوان ته لازمه ده چې د هغه علم په اندازه چې حاصل کړی یې دی عمل هم پابند ولري. که په ساده ډول وو ایو کردار یې باید د ویلو په اندازه وي.

۱٦- هر ټکه چې د هیواد د راتلونکو مفاخرو د حرمت او عزت لباس د ځوانانو د قد او قامت سره ښه ایسي نو ځوانان د خپلو نیکو او بدو عملونو په نتایجو سره د خدای او خلکو په مقابل کې د راتلونکې مسئولیتونه په غاړه لري، نو ځکه تر هغه اندازې پورې چې کولای سي باید خپل ظاهر او باطن د علم په هې ز یار او کوښښ په ګینه ښایسته کي. ځو ددوی په پاکه لمن باندې یو کوچنی لکه هم پاته سي او نیکنامی ته یې تاوان هم ونه رسوي.

# دوتـــــــــــاره

دوتاره زموږ د غرنيو ولسي خلکو د ساز هغه آله ده چې د ډېرې پخوانۍ زمانې څخه په غرنيو او کليو والي سيمو کښې باب شوې ده او د غرنيو سيمو د شوقي ځلميانو د ساتېري او غم ښه لولو يو اعتني ملګرې ده د غرنۍ سيمې د ځوانانو د ستړيا لرې کولو او سرګرمېدو يوا ځنی ساز او سرود دغه دوتاره ده چې دا به ډېر اسانۍ سره ل دوی پخپله په همدغو ځايونو کې جوړېږي.



بدې ډول د نيم متر په اندازه صافه تخته وا خلي او د يو ګردي لرګي د ډډې منځ د کوچنۍ کاسې په ډول خالي کوي او پر منځ ئې د پسه يا وزګړې نازک پوستکی لګه دا ګرې (د ډبې) څوندې هوار وي. بيا نو دوه تارونه کې د پسه د کلمو وي او که د سنې ي سپوږمو د تينګو تارو څخه وي د تنبور د تارو په ډول د تختې ود ډډې پر منځ

سرتر با پا بوږي غزوي. په سر کښې لکه د تنبور په شان د لرګو پر دوو ميخونو باندې تړلي وي هر وخت چې د دغه آلې د غږونکي وغواړي تارونه ئې ټينګ يا سست کړي د دغو ميخو په واسطه دا کار کېدلای شي.

دغه دوه تاره د دلاس د ګوتو په حرکت يا د ښکر يا د لرګي څخه په جوړ شوي کوچني ميخک چې په اصطلاح کې ورته شهباز وائي غږوي.

د ساز د دغه کوچنۍ آلې د غږونکي سره کليو والي ځلميان کله کله د ښاد يوا وخو ښۍ په ورځو کې نور

دوه تنه د ډيم يا د ډبې په وهلو سره يو ځای کيږي چې دغه د ډې کسيزې سازې ډلې ته د حجرې باتيار هم وائي.

په کليو او غرنيو سيمو کې دغه دوه تاره په ډاسې شوق او ذوق غږوي چې اوريدونکي ئې اقعاً دا درک کولای شي چې په کليو والي سيمو کې ولسي سرودونه او پښتنې سندرې ډېر پخوا له د پښتونخوا په غر او ودرو کې د پښتنې شپا مت څرګند ه نښه ده دا ځکه پښتانه ځلميان په هر وخت کې د خپل هيواد د ساتنې د پاره د جنګ ډګر ته په ډول سر ناوا ڤن وائيدل.

زموږ د ارغوني هيواد په هر ګوټ او غرينو سيمو کښې د ساز او سرود ډول ډول آلات شته چه پخپله د دوی له خوا جوړېږي لکه نل (نی) او شپيلۍ چې شپيلۍ هم د آريائي قاموس لرغوني تاريخ لري او دغه آلې هر يوه ئې د خپل ولس او محلي ساز او سندرو څرګندونه دي.

د دوتاره د غږونکي د دغه آلې د غږولو سره يو ځای د پښتو او دري ولسي نارې، لنډۍ، او بدلې وائي او دغې سيمې شوقي سندرغاړي د غه آله لري او په ډاسې مهارت ئې غږوي

چې اوريدونکي ئې د اوريدلو څخه پوره خوند اخيستلای سی.

«د دریم مخ پاته»

# د افغانستان د خلکو...

### د پښتنو مبارزې د عربو په مقابل کې:

د تاریخ د مطالعې څخه دا ښه واضح ده چې عربو د یوې خوا په افغانستان کې د خراسانیانو څخه استفاده وکړه. چې د ساسانیانو، ترکانو او چیندایانو نفوذ د شمالي او غربي برخو څخه وباسي او هم ئې د (یزدګرد) د تعقیبولو په پلمه عربو په خراسان کې خپل سیاسي او نظامي نفوذ زیات کې.

که څه هم د عربو لښکر کشي په هرات، مرو، بلخ او تخارستان کې موفقې وې مګر د نیشاپور او سیستان سیمې د عربو تر لاس لاندې وې ددې دواړو سیمو والیان په دې لټه کې وو چې د عربو سیاسي او دیني نفوذ په نیشاپور او سیستان کې زیات کې.

مګر کله چې خراسانیانو ولیدل چې په ۲۳ هجري کې ترکان بیرته ماوراءالنهر ته وګرځیدل چیندایانو تخارستان پریښود او په ۳۱ هجري کال کې ساسانیانو د لښکرو مشر مړ او ساسانیانو ماته وخوړله او شاته ولاړل نو په دې وخت کې د افغانستان آزادي غوښتونکو خلکو په ټولو ولایاتو کې د عربو پر ضد په مبارزه لاس پورې کې او د هغو سره ئې جګړې شروع کړې او په دغه رنګه

محلي حاکمانو او پښتني آمرانو د خراسان په شمالي او غربي برخو کې د عربو پر ضد په جګړو لاس پورې کې

په ۲۳ هجري کال په هرات کې هراتي (قارن) په بادغیس او هرات کې لوی لښکر برابر کې او په نیشاپور کې ئې د عربو پر مرکز باندې حمله وکړه په دغه جګړه کې عربو سخته ماته وکړه او هم د عربو د عسکرو مشر د بصري خواته وتښتیدی په دغه جګړه کې (قارن) د عربو ځینې عسکر ونیول

او بندیان ئې کړل په دې وخت کې په نیشاپور کې د عربو مشهور قوماندان چې عبدالله ترمیذی د (قارن) سره د جګړې کولو په لټه کې سو او د عربو لښکرو تا پیره پر (قارن) باندې حمله وکړل او په دغه جګړه کې قارن مړ شو نو عسکرو ئې ماته وکړه او عربو خپل هغه بندیان خوشې کړه کوم چې (قارن) په جګړه کې نیولي وو.

### د سیستان ښورښ:

د سیستان خلکو هم د عربو پر ضد په جګړو لاس پورې کې او د عربو حاکم چې (ربیع) نومیدی د سیستان څخه ئې په ډیر بد حالت وشړی او هم ئې د عربو سره خپل قرارداد ونه پرې کړل عربو په دې وخت کې د خراسان د نیولو په غرض نوي ترتیبات ونیول او ددوی دواړو ترمابین سختې جګړې وسوې امیرالمؤمنین (رض) د عربو لوی خلک لکه عبدالرحمن بن ثمره (رض) او نور پوهان سره د یو لوی لښکر د اسلام د خپرولو او د سیستان د نیولو په غرض وا ستول عبدالرحمن (رض) تر زرنج پورې مخ ته ولاړی او د سیستان والي د سولې غوښتنه وکړه.

د افغانستان د ازادۍ غوښتونکو مبارزو په لړ کې د ابو مسلم خراساني مبارزې او کارنامې ډیرې د قدر وړ دي.

په ۱۲۴ هجري کال کې کوم وخت چې ابو مسلم ۲۳ کلن و بخپله ئې کوفې ته سفر وکی او د امام ابراهیم عباسي سره ئې وکتل او د هغه سره ئې مجلس وکی ابو مسلم خراساني په دغه سفر کې

د پارس او عربو هیوادونه د نږدې څخه ولیدل او په حال ئې ښه ځان خبر کی. او وروسته تر څه مودې بیرته خراسان ته راغی

او د بني امیه پر ضد ئې شورش وکی او ملت ئې ددوی په مقابل کې تحریک او ډیر طرف داران ئې پیدا کړل. په ۱۲۸ کال کې ئې مکې ته سفر وکی او د امام ابراهیم سره ئې پخوانۍ تړونونه نوي کړل او بیرته خپل هیواد ته راغی او په ۱۲۹ کې ئې د عباسي کورنۍ د خلافت اعلان وکی او اموي خلیفه ئې د تخت څخه ایسته کی او

هم په دې وخت کې پر ابو مسلم خراساني باندې د خراسان عسکر او ملي مشران راټول سول د روژې د میاشتې پر پنځمه نیټه په ۱۲۹ کال کې ئې د حکومت چارې پلاس کې ونیولې.

## د مغولو په مقابل د پښتنو ملي شورښونه:

کوم وخت چې بابر د کابل پر تخت باندې کښېنستی او پر هند باندې ئې لښکر کښې وکړل او د ځینو علتو په سبب سره بابر په دې بریالی سو چې په هند کې لودي کورنۍ ته خاتمه ورکي.

سلطان ابراهیم لودي په ۹۳۲ هجري کال کې په جګړه کې مړ سو او بابر د هند د حکومت واګې پخپل لاس کې واخستې (پوهېږو چې هندوستان تر اسلام وروسته د سلطان محمود غزنوي په وخت کې فتح سوی ؤ او ډېر پاچهان د هغه په ذریعه اداره کېدل او د هندوستان پر ډېرو برخو ئې حکومت کاوه) بابر لودي کورنۍ ته په هند کې خاتمه ورکړل او د هغو حکومت ئې د مابین څخه ایسته کي او د هغه پر ځای ئې مغولي دولت رو یکار کي پښتنو چې د ډېري پخوا څخه د هند پر خاوره حکومت کاوه او هغه ئې اداره کوی نو په دې وخت کې پښتنو د خپل قدرت د لاس ته راوستلو په غرض پاڅونې شروع وکړل د پښتنو یو نفر چې سوری پښتون (سوری شیرشاه) نومیدی په هند کې مغولي دولت د منځه یووړ.

سوری شیرشاه د یوی کوچنی د ټبر څخه یو لوی اقتدار ته ورسیدی چې د پښتنو لوی اقتدار د حکومت ئې په هند کې برانیستی چې د هند په تاریخ کې د ویاړنه پاڼې لری. سوری شیرشاه په ۹۳۷ هجری کال کې د هند د بهار په سیمه کې پاچهۍ ته ورسیدی او په هغه وخت کې بابر

مړ شوی او د ده زوی همایون: سوری شیرشاه د دلاورۍ، لیاقت څخه په ویره کې ؤ نو په دغه وخت کې همایون د خپل دولت د ساتنې په غرض پر سوری شیرشاه باندې حملې وکړې مګر سوری شیرشاه په دغه جګړه کې همایون ته سخته ماته ورکړه او سوری شیرشاه د بابر د هغه تیموری دولت چې په هند کې ئې تأسیس کړی ؤ د منځه یووړ او د هغه پر ځای ئې د پښتنو حکومت په هند کې جوړ کي او د ټول هندوستان د شاهنشاه په نامه پر تخت کښېنستی.

سوری شیرشاه په ۹۴۷ هجري کال کې د خپلو پښتنو ملګرو په کومک سره پر ټولو دښمنانو باندې بریالی سو او د لښکر په تنظیم ئې لاس پوری کی څکه چې شیرشاه غوښتل داسې یو دولت مابین ته راولی چې تر ده وروسته

کسان هغه په ښه ډول سره اداره کی کوم وخت چې سوری شیرشاه مړ شو نو د سوري کورنۍ نورو پاچهانو دغه لوی امپراطورۍ ته نه سوای اداره کولای په دې وخت کې تیموری دولت بیا په فعالیت شروع وکړه نو څو چې

د هغې لوی امپراطوری یوه برخه ئې وانیوله مګر بیا هم پښتنو د خپلو ازادی غوښتونکو مبارزو څخه لاس نه واخستی

او د تیموری دولت پر ضد ئې شورښونه شروع کړل چې د هغو مبارزینو د جملې څخه یو هم پیر روښان دی.

پیر روښان ابتدائی زده کړه د خپل پلار څخه کړې وه او وروسته بیا هندوستان ته ولاړی او د هند څخه بیرته خپل هیواد ته راغی او په ازادی غوښتونکو مبارزو ئې لاس پوری کی او ډېر ملګری ئې پیدا کړل او هم ئې په لږ وخت کې ډېر شهرت پیدا کی چې د ده دغه شهرت په هند کې مغولی دولت په ویره کې واچوی د مغولو دولت په هغه وخت کې زموږ په هیواد کې هم لاس درلودی. د کابل والي د مغولي پاچا په امر پیر روښان کابل ته راوستی او بندی ئې کی مګر پیر روښان خپل ځان د بندی خانې څخه خلاص کی او پېښور ته ولاړی او د نورو په غره کې ئې ځای ونیوی او د خپلو

ملګرو په مرسته د مغولو په مقابل کې په مبارزو شروع وکړه او د هغه ځای څخه تیراه ته ولاړی او د خپلو جذابو خبرو په واسطه ئې د هغه ځای خلک د مغولو په مقابل کې ولمسول او هم ئې په یو جنګ کې د مغولو عسکرو ته سخته ماته ورکړه او د جلال اباد د نیولو په لټه کې سو او په جنګ کې د مغولو دولی د خوا څخه ماته وخوړل.

هوا ډېره ګرمه وه پیر روښان د یو ځای څخه بل ځای ته په پښو مزل کاوه او د ډېرې سختې ګرمی په سبب ګرمی (جولی) وواهه او د ۷۲ کالو په عمر وفات سو او د پېښور په اشتغر کې ئې ښخ کی.

ځینې داسې روایتونه هم سته چې وائی: د پیر روښان مړی کی د ده دښمنانو د دریاب ته واچول.

کله چې پیر روښان وفات سو او د ده زامنو هم د پیر روښان په شان خپلو ازادی غوښتونکو مبارزو ته ادامه ورکړه او د دوی دغو مبارزو ۱۷۰ کاله دوام وکی څو په پای کې مغولی پاچا شاه جهان د پیر روښان د اولادې سره سوله وکړه او د روښانیانو جګړې پای ته ورسېدې.

د ۱۳۲ مخ پاتې:

# د لوفتهانزا...

داسې ښکاریده چې د کوماندوگانو مشر تر اوسه پورې لا د خپل کار د انکشاف څخه پوره خوشحاله دی او له دې کبله ئې وستیوارډسې ته اجازه ورکړه چې د کپتان وکوټې ته ورننوزي چې یوه پیاله قهوه وکپتان ته او یوه پیاله سره له څو دانو کلچو ورته ور کړي.

گلاوسن له ځانه سره فکر و کړ چې د سرتیرو مشر به خامخا داسې گمان کړی وي چې ستیوارډسې به دده په چاپو کې یوه اندازه خوب راوړونکي پوډر اچولی وي د دې د پاره چې دا ډول اشتباه پیدا نه سي نو د

کوماندوگانو د رهبر څخه ئې وغوښته که اجازه ورکړي ستاسو د چاپو څخه به اول غوړپ زه و کم خو د تښتونکو مشر زما د غه پیشنهاد قبول نه کړ او د چاپو په څښلو ئې

شروع وکړه. پس له هغه چې خپل وروستي پروگرام ئې کپتان ته بیا تکرار کړ نو د مسافرانو سالون ته ور د مخه سو وروسته (مایا یکتن) د الوتکې ستیوارډس خپله

اشتباه د (شترن) وخبریال ته داسې وویل: د سرتیرو مشر پوره په حال کې معلومیدی او په دغه کار کې ئې خپل ځان حق په جانب گاڼه ده بیا تکرار کړه چې د ضرورت په صورت کې به الوتکه وچوي او په دې کار کې

وخپل ژوند ته به کوم قیمت نه دی قائل، ما هم پوره باور درلود چې دی په خپل دغه تصمیم کې ډیر جدي دی.

دغرمې نه وروسته د (۲) بجو په شاوخوا کې وو چې د میونیخ سره تماس ونیول سو میونیخ موږ ته خبر راکړ چې د دې تنه فلسطیني بندیان د میونیخ وهوائي ډگر ته انتقال سول د کوماندوگانو مشر وغوښتل چې دوی

دې پیاله څنګه په یوه بله الوتکه کې وژاگرب ته راورسول سي د میونیخ اضطراري کمیټې غوښتل چې په دې جریان کې د یوه پیچلي تاکتیک څخه کار واخلي

او په دې سبب ئې پروخت تر لاسه کړی او څکه ئې د ډیلي سقیشن د لارې ښتونکو ته خبر ورکړ چې د درو تنو فلسطیني کوماندوگانو وړونکې الوتکه

د میونیخ په هوائي ډگر کې وژاگرب ته د الوتنې د پاره آماده ده خو یوازې د ژاگرب د مسئولو مامورینو اجازې ته گوري.

د سرتیرو مشر د دغه خبر په اورېدو سره سخت اندېښمن سو او گلاوسن ته ئې وویل: «المانیان غواړي موږ په دغه دام کې واچوي کوم چې زموږ د پاره ئې غوړولی دی».

په دې ډول ئې سمدستي حالت تغیر وکړ او زیاته ئې کړه.

که زموږ سره ژمنې د هم مطابق معامله ونه سي نو موږ به الوتکه وچوو.

گلاوسن د بې سیم د لارې د کنټرول د برج سره تماس ونیو او خبر ئې ورکړ چې د الوتکې د راکښته کیدو اجازه د دې څخه لا په مکتوبي ډول وغوښتل هغو ته

مخابره سو یوه اماده درو تنو فلسطیني بندیانو وړونکې الوتکه چې الوتنې ته چمتو وه تر اوسه لا د میونیخ په هوائي ډگر کې ولاړه وه. اوس چې د میونیخ اضطراري

کمیټې تازه دا غوښتنه کړه چې باید د دې درو تنو بندي کوماندوگانو په بدل کې دې لیږدې د الوتکې مسافران په ژاگرب کې خوشې کړه شي خو د سرتیرو مشر دغه غوښتنه په شدت سره رد کړه.

گلاوسن وروسته د شترن وخبریال ته پر دې موضوع رڼا واچول او وې وویل:

د سرتیرو مشر موږ ته په ټینګ ډول اولتیماتوم راکړی وو او په هیڅ ډول حاضر نه و چې د خپلې خبرې څخه تیر سي.

د ماپښین (۲) بجې وې چې اوضاع وخپل وروستي حد ته رسیدلې وه.

د اوضاع وخامت او د بحران شدت د هغه نه اوله مخې په ترا تشخیص کیدای سي کوم چې

د زاګرب د کنټرول په برج کې ساتل کېدې.

د کوماندو ګانو د مشر او د الوتکې د کپتان (ګلاوسن)

ترمنځ د دوی د ټېټ سرو خبرو جریان د لوفتهانزا بوی بلې الوتکې په واسطه چې د ډیلي

کولو ماموریت ئې په غاړه درلود و میونیخ ته مخابره کېدل.

دادی د هغو خبرو اترو یوه برخه وړاندې کوو:

ګلاوسن (په انګلیسي) دا ٣٦٤ شماره د میونیخ اېرېشن دی.

د فدرالي المان حکومت باید

له ډېرې چټکې څخه کار واخلي د سرتېرو تهدید په څرګند ډول ډېر جدي دی او تازه د سونګ

د موادو د کموالي سره هم مخامخ یو.

د تښتونکو مشر - دادی موږ اوس د یو ګوسلاو یاد حکومت

څخه د زاګرب په هوائي ډګر باندې د الوتکې د راکښته کېدو اجازه تازه په لاس راوړه.

هیله لرو چې د غربي المان حکومت بالاخره د یوه معقول روش څخه کار واخلي.

ګلاوسن - دا ډول فیصله سوې ده چې د میونیخ د درې تنه عربي بندیان

پخپله الوتکه کې د ځان سره اخلو او بیا د الوتکې د تلولو سوولي سره بوځای په یوه عربي

هیواد کې په خوندي تو ګه راکښته کیږو او دوستانه په ګډه له

خوشحالۍ سره دا یوه بېله عقیده لرو موږ چې ته به هیڅ تاوان

راونه رسېږي ځکه د سرتېرو مشر زما سره پخپل شرف قسم کړی دی.

ګلاوسن و دوستانه دشترن وخبر یال ته وویل: د کوماندو ګانو د هېرد و یاره

تصمیم ونیو چې د خپلې ورورسته مفاهمې څخه بېرته واوړي. اصلاً دی د خپلو

درو تنو هم مسلکانو د خوشي کولو څخه نا امیده سو ځکه د، خو ځنه چې د سونګ

د موادو د اختلال د پاره د زاګرب پر هوائي ډګر باندې راکښته سي او بیا د عربي هیواد: څخه و یوه هیواد ته ورد

و ګرځي او په هغه ځای کې یوه لویه فاجعه منځ ته راوړي.

ګلاوسن ژبا ته کړه چې د لیونیانو په شان مې په لیونتوب د سرتېرو مشر

مجبور کې چې خپله پخوانی فیصله قطع نه کړي ځکه دی هم دې ته چمتو سو چې زما

وخبرو ته غوږ ونیسي او خپل پلان خراب نه کړي

له هغه سره سره مې ده ته دا څرګند و له چې زما هم دا آرزو ده چه تو له کار ونه ستاسو

په خوښه پرمخ ولاړه سي او باور لرم چې د هغه په سر ته رسولو سره به پوره بریالي سو

بیا به مې د عجز او مهربانۍ له لارې

دده پر سر لاس ورتېر کې.

او ورو ستنه مې خپل لاس مکروفون ته وراوړ کې: دا ٦٣٤ شماره الوتکه

د میونیخ اېرېشن دی.

ګلاوسن له تاسو سره خبرې کوی او دا په زماو دوستې ټیلفون وی.

بالاخره په څرګند ډول دا نه وواياست چې آیا ددرو تنو عربي بندیانو

الوتکه د میونیخ له هوائي ډګر څخه دا الوتې ده که نه؟

تاسو څه وویل؟

د الوتکې ماشینونه چالان سوې دی؟

ډېر ښه! په دې برخه کې معلومات را کې چې الوتکه په د هوائي ډګر څخه په کوم وخت

په حرکت راسي، ستاسو د اتکل له مخې الوتکه به څه وخت د زاګرب پر هوائي ډګر باندې راکښته سي؟

باید د غه الوتکه فوراً الوتنه شروع کې او اوس باید په فضا کې وي.

د سرتېرو مشر - لوفتهانزا میونیخ ! اعلام کوم چې د آخر حل د پاره د خدای په امان! دد غې فاجعې مسئولیت به مستقیماً د غربي آلمان پر غاړه وي.

ګلاوسن - وخت ٦ بجې او ٤٥ دقیقې دی د میونیخ دا اېرېشن څخه خبری کیږي. آخر باید موږ

و بو هیږو چې د الوتکې موقعیت څه ډول دی په ظرف کې د (٣)

دقیقو باید پرفضا راښکاره سي

(په سوځېدونکې صاد) مهرباني وکې د میونیخ د هوائي ډګر برج ته مستقیماً هدایت ورکی

چې الوتکه دی فوراً خپله الوتنه شروع کې ی.

سرتېرو مشر - ستاسو حکومت په مسالمت آمیزه ډول د ښځې د حل طرفدار نه دی، درست دی؟

د الوتکې د سرلو ښت آخرې شېبې دا رسېدونکې دی ډېر تشکر!

دد غه کار د خطرناکو عواقبو مسئول پخپله ستاسو حکومت دی نه موږ!

((نور بیا))

د ډاکټر قمرالدین په قلم

د اردو له مجلې څخه

(پښتو کوونکی اکریمی)

# د وریښتانو رژیدل

## دوهمه برخه

د وریښتانو رژیدل په ځینو مواردو کې شاید ځوانو او مزمن سبب ولري چې له دغې امله د وریښتانو مزمن رژیدل پېښوي.

خاصه نارو غۍ دي چې د هغې علتونه خصوصیات او پر مختلفو جنس په لحاظ یعنې د نرو او ښځو والی.

په اساس تو پیر مومي په ناروغو کې د مزمن رژش علت زیاتره د سر په شوره یا خارښت پوري تړلی، خو د سر خارښت په دې برخه کې

زیات مسئولیت نه لري او علت اکثره ارثي وي یا په هورمونو پوري ارتباط لري هورمونونه

یو ډول مواد دي چې د بدن داخلي غدو په واسطه ترشح کیږي) په حقیقت کې دغه ډول رژیدو ته دارثي هورموني رژیدو اطلاق

ډېر صحیح دی نسبت د خارښت رژیدو ته. دغه رژیدنه چې ځینې وخت نا سخت او کله بیا ضعیف دی

او تل یو خاص شکل ځان ته لري یعنې د یو ی دایرې په شکل وي چې وریښتان نه لري او د تندي څخه کراره کراره تو له وریښتان

د ازلي خوا ته د ښځې ځي د ککرې وریښتان ټول تو ییږي یواز ې د ټیکو او څټ وریښتان پاتیږي

تر دغه ډول رژیدو ته هیپو کراټي ډول وایی چې هیپو کراټ هغه ذکر کړی دی هیپو کرات چې د

طب پلار بللای سو یو یوناني طبیب و چې څلور پیړۍ تر میلاد د مخه یې ژوند کاوه او پخپله هم په دغه ناروغۍ اخته و نو د ی املاه ی د دغه نا روغۍ نښې

پښې شرح کړې دي او د غه ډول مزمن رژیدل ئې په درو برخوو یشلي دي:

د وریښتانو شدید رژیدنه چې د ۱٦ او ۱۸ کلنۍ څخه شروع او هره ورځ د ۲۰۰ څخه تر ٤۰۰ وریښتان رژیږي او په

۲۵ کلنۍ کې سر بشپړ طاس کیږي زیاتره کسان چې په لږ سن کې خپل وریښتان د لاسه ورکوي، د دغه ډولي څخه دي.

د وریښتانو متوسط رژیدنه چې د ۲۳ یا ۲۵ کلنۍ څخه شروع او هره ورځ د ۳۰ څخه تر ۵۰ وریښتان رژیږي او د ٤۰ څخه تر ۵۵ کلنۍ پوري سر پوره طاس کیږي.

د وریښتانو خفیف رژیدنه د ٤۰ کلنۍ څخه شروع او هیڅکله سر نه لڅیږي په دې ترتیب نو د ۱٦ کلنۍ څخه تر ۲۵ کلنۍ

پوري کو لای سو چې د وریښتانو سر او شت و ټاکو څکه هغه کسان چې په آینده کې ئې سر طاس کیږي. په دغه سن کې یې وریښتان په رژیدو پیل کوي.

خو با ید پو هیږو و چې نژاد په دغه باره کې مهم رول لري.

په دې اساس جاپانیان بیخي لږ طاس کیږي. تور نژاد هم د دا مد اره ډینګک وریښتان لري اما سره له دې

هغه تور پوستان چې امریکا ته کوچ کړی دی د آب و هوا د بدلون په سبب یې د غه ځینګړنه د لاسه ورکړي ده او ډېری سر لڅیږي.

د وریښتانو د رژیدو علتونه په نارینه جنس کې ډېر رایدل کیږي په دې لږ کې د نارینه والی د

هورمونو او د بیضو د ترشحاتو څخه سترګی نه شو پټو لای. هیپو کرات تر میلاد ۲٤ پیړۍ د مخه دې موضوع ته اشاره کوي چې

خواجه ګان (هغه کسان چې ښځې نه لري) هیڅکله نه طاسیږي او د ارسطو په اېکنو کی هم د دې

موضوع سره مخا مخ کیږو چې ښځی او ملکان هیڅ خپل د وریښتان له لاسه نه ورکوي د طبي لحاظه هم تا بیته شوې ده چې د بیضو په

لیرې کولو سره (مثلاً د بیضو د سرطان په ترخ کې) د وریښتانو رژیدنه سمدستي قطع کیږي.

د دې قولو مطالبو څخه داسې څرګندیږي چې د نارینتوب هورمونونه د وریښتانو په

رژیدو کې اساسي برخه لري ځینې

جلدي متخصصین عقیده لري چې

دا ډول رژیدل په هورمون پوري اړه نه لري بلکه د هورمون د موم

په واسطه ریښه متأثیره کیږي

تجربې ښودلېده چې مړ دانه هورمون په تجویزاندرو چنو ته هغه ته شدت ورکوي او د سرخانګره زیاتوي په داسې حال کې چې د ښځو لېږي

کول د جراحي عمل له لارې د سر دخانګرې مخنیوی کوي د عصبي نظره هم د عصبي ګرزنده عقدو

تحریکه د سرد پوست د غوړزګی پرسیلان باندې اغیزه لري او هغه زیاتوي او برعکس د واړو

په ذریعه د نازکو سمپاتیکو اعصابو د عمل په کمولو سره خانګره د منځه ځي. په دې باره

کې په مثال د پارکینسون عصبي ناروغي ذه د دې ناروغۍ ناروغان چې د «ال دوپا» د دوا په ذریعه تر

علاج لاندې نیول کیږي، زیاتر زره متوجه کیږي چې د سرد وست غوړزګي یې لږیږي او د خانګرې

څخه ببغه کیږي.

خو څرنګه چې دا دا نور عوارض ښیږوي او څکه د خانګرې

د پاره د هغه څخه کار نه سو اخستلای.

د ښځود وربښتانو رژیدل هم زیات علتونه لري؛ لکه د داخلي غدود عمل اختلال، میکانیکي

علتونه، روحي شکنجې او ترڅو لر زیات د نارینه او ښځینې هورمونو اهمیت لري.

دحامله توب په وخت کې د ښځینې هورمونو یعنې استروژن زیاتوالی، د سر دانه هورمون عمل خنثی کوي او د وربښتا و

رژیدل متوقف کوي. ډېر تره میرمنې چې د وربښتانو د رژېدو څخه شکایت کوي، دې موضوع ته متوجه دي او

پوهیږي چې حامله توب تر کومه حده د وربښتانو د رژېدو مخنیوی کوي. دا موضوع د کوچنۍ د زیږیدو وروسته

دوام کوي او وروسته بیا وربښتان په رژېدو پیل کوي.

باید وپوهیږو د ښځو د وربښتانو رژېدل د نارینو سره نه مقایسه کیږي

څکه ښځې هیڅکله د نارینو په شان نه طاسیږي، بلکه وربښتانو کې یې لږوالی راځي. د ښځو د وربښتانو د رژېدو بل

علت د مضرو کیمیاوي موادو استعمالول دي لکه د وربښتا و رنګ د غه ډول رژېدل د علت د له منځه وړلو او د تقویه

کوونکو موادو په استفاده سره بهبود مومي. د وربښتانو د رژېدو بل علت روحي علت دی، د بده مرغه د ننني ژوند وضع

داسې ده چې د دغه کار د پاره یې ښه ترا زمینه برابره کړې ده لکه د میړه او ښځې

اختلافات د کورني ژوند کړکیچ نې او د شغل او وظیفې مشکلات.

هغه ښځې چې هم د کور کارکوي او هم تر کور د باندې مصروفیت لري، نو دوی جسماً او روحاً تر فشار لاندې راځي.

نو د دې د وربښتانو رژېدل تر هر څه زیات روحي درمان ته اړتیا لري، نه موضعي درمل ته.

د پورتنیو مطالبو په اساس پوهیدای سو چې د وربښتانو رژېدل یوه مشکله

موضوع ده او د هغه چاره باید د هغه د علت د پیدا کولو د لارې وسي.

د وربښتانو د رژېدو ننني د رمل تسکیني دي چې موضعي درمل هم ور سره ملګري وي.

لکه د مخرکو موادو او ویټامینو موښل د سر د پوست پر مخ او د پوست د لارې د هغو جذبول.

د سر د وربښتانو د پریولو په هکله بیلې بیلې عقیدې سته چې باید په هفته کې څو واره سر

پریولې سي او برعکس چې زیات پریولو د چربي سیلان زیاتوي او د ربښې د پرله پسې تحریک په

سبب وربښته رژیږي. په هر حال د بنده په عقیده باید سرو وربښتان هر وخت د صابون یا شامپو په

واسطه پریولې سي او خوا یا کې وسایل سي نرم و د غوړزګي څخه په امان وي څکه غوړزګي د وربښتانو د خفه کیدو سبب ګرزي.

د سر د غوړزګي او چربي د لیرې کولو د پاره یو ښه ترین دوش د سر موښل (ماساژ) دی چې

د اعمل د سپار او ماز یګر له خوا باید پرله پسې د لسو دقیقو د پاره اجرا سي وروسته تر هغه

د سر پرس باید په خاصه پاملرنه استعمال سي. هغه کسان چې ګڼ او زیږ وربښتان لري باید

نسبت و نورو کسانو ته زیات سر پریمنځي. سر په په شامپو پریولل سي ښه په وي نسبت و صابون ته څو

ګوکې لرونکي صابون نه د وربښتانو د پاره ښه ترینه دي. د معمولي یا د چوو وربښتانو د پاره

په هفته کې یو وار پریولل کافي دي د شامپو انتخاب پوازې

د ورېښتانو په نوع او جنس پورې اړه لري بلکه د اوږدوالي کيفيت د خلکو په شغل او آب و هوا پورې هم اړه پکې لري.

د ورېښتانو پريولل دوې مرحلې لري: لومړی د سر ورېښتان بايد مرطوب سي او سر په شامپو ومښل (ماساژ) سي بيله دې چې شامپو ځګ وکي. دوهم ځل بايد سر په دقيق ډول ووينځل سي. په هر صورت هغه محلول چې د ورېښتانو لپاره استعمالېږي بايد د ورېښتانو د وضع سره متناسب ولري. ګوګړ لرونکي محلول او نه دغو ډول ورېښتانو د پاره او نور مخصوص محلولونه د چو ور ورېښتانو د پاره ډېر ښه دي د ورېښتانو د رېښو د تقويې د پاره ګوډرون يا قطران ډېر ښه دواده خو بوئې نامطبوع بدبوي لري د «ب» د خاندان ويټامينونه په تېره بيا ويټامين «ب۶» بيوټين او پانتوتنيک اسيد هم زيات مؤثر دي. دي بايد ووايو که د غذا د موادو ته ډوله اغېزه ونه لري بيا هم د ورېښتانو د ودې بدو څه مخه نيسي خو نه بايد د ټنې درملو څخه د معجزې هيله ولرو ترڅو لو درملو يوه ښه چاره چې بدي ور سره کلوکي د يوا ژني درمل په نامه پيژندل سوي دي مګه د ورېښتانو پيوند دي چې د جراحي په واسطه د سر د شاد

پوست يوه ټوټه داخلي او د سر د مخ خوا ته ئې پيوند وي د دغه پوست هره ټوټه ۳،۵ ملي متره وي او يو شمېر ګڼ ورېښتان لري په يوه جلسه کي کولای سي چې سل پيوندونه اجرا کړي او دا عمل تر يونيم ساعت زيات وخت نه نيسي او که د طبابت په شدت ډېر وي کولای سي چې يوه مياشت وروسته بل پيوند وکړي دغه ډول پيوندونه زياتې د نارينو د پاره چې طاس سوي وي ګټور دي نه د ښځو د پاره بالاخره دغه درمان کامل علاج نه بلل کيږي بلکه بايد د ورېښتانو د زياتېدو طبعي چاره پيدا سي له دغه امله دي چې متخصصين هڅه کوي څو د ورېښتانو په اسرار وپوهيږي.

د ورېښتانو رنګ د ورېښتانو د سلولو په رنګينه ماده پورې اړه لري دغه مواد دوه ډوله دي په سلولو کي تيت سوي رنګينه مواد چې مخصوص د ژړو او قهوه يي ورېښتانو دي هغه رنګينه مواد چې د مجزا دانو په شکل په سلولو کي ځاي لري د تورو ورېښتانو مخصوص مواد دي. د ورېښتانو سپينېدل په هوايي کوپو پورې اړه لري يعني د رنګه موادو پر ځاي د هوا کوپي د ورېښتانو په سلولو کي ځاي نيسي.

ټولوونکی امير محمد (ترکی)

# کتاب او مطالعه

که موږ لږ څه څير شو او په دې پوه شو چې دا وسني عصر ټول پرمختګونه، اختراعات او کشفيات د کتاب او مطالعې سره خاص اړه لري، ځکه چې علوم او فنون يوازې د کتابونو او اخبارونو د مطالعې او لوستلو په ذريعه ده کېږي او د يو مملکت نه بل مملکت ته انتقال مومي، همدا مطالعه ده چې موږ د دنيا د هر راز خبرونو او واقعاتو او پېښو نه خبروي.

نو د دې د پاره ښايي چې هر څوک د کتاب او مطالعې سره مينه او علاقه وساتي.

يو عالم د کتاب او مطالعې په باره کې داسې ويلي دي چې کتاب يو داسې عالم او ښوونکی دی چې نه کوم حق الزحمه غواړي او نه هم شاګرد په ځېږه وهي.

(مونتسکيو) د کتاب او مطالعې د فوايدو په باره کې داسې ويلي دي چې د کتابونو لوستل د غم او غوسې ساعتونه په خوښۍ بدلوي.

«ديکارد استيل» نومي يوه داسې ويلي دي چې د کتاب لوستل او مطالعه او لوستل په دماغ داسې اغېزه لري لکه ورزش چې ئې په بدن او اعضاوو لري.

معقول دی چې کتاب داسې ملګری دی چې هېڅکله د چا څخه نه خفګين کېږي.

نو د معلوماتو د زياتولو، په خوښۍ د خپل ژوند تېرولو، د دنيا د خبرونو اختراعاتو او کشفياتو نه د خبرېدو مهمترينه او بهترينه وسيله همدا مطالعه ده وبس.

د ارا کوزيوال په قلم :

# د کندهار د موزيم لنډه پيژندنه

## څلويښت کاله دمخه په کندهار کې موزيم منځ ته راغی

د هر هېواد خلک دا کوشش کوي چې خپل تاريخي او لرغوني آثار په موزيم کې راغونډ او خوندي کړي څو چې د يوې خوا ئې خپل محصلين او د خلک د ژوندي تاريخ په حيث د کتلو څخه

دلمي استفاده وکړي او د بلې خوا ئې د دغو آثارو د ليدلو څخه نور خلک دا تصديق وکړي چې هغوی په پخوانيو وختونو کې علاندي دودي او لوړ مدنيتونه تير کړي او ستر آثار ئې د هغو نمايندگي کوي.



د موزيم يوه برخه

اوس د نړۍ په ټولو هېوادونو کې د تاريخي آثارو لوی موزيمونه سته او په هغو کې ئې نه يوازې د خپلو هېوادونو قيمتي آثار راغونډ او ساتلي دي بلکه د نورو هېوادونو لرغوني آثار ئې هم

پکښې ايښي دي چې په هغو کې د امريکا، انګلستان، شوروي اتحاد او د اسې نورو مترقي هېوادونو موزيمونه ډېر لوی او نومرته ئې ديادولو وړ دي .

افغانستان چې يو لرغونی او تاريخي هېواد دی که څه هم زموږ په هېواد کې يوشمېر موزيمونه سته خو يوشمېر تاريخي آثار مو د استعمار په دوره کې انګريزانو د ځانو سره وړي دي

او د لندن په موزيم او د اسې نورو موزيمونو کې سته.

اوس زموږ په هېواد کې د موزيمونو يو پراخ تشکيل موجود او د اطلاعاتو او کلتور په وزارت پورې اړه لري او

د کابل په موزيم کې يوشمېر غنيمت تاريخي آثار راغونډ شوي او حتی د لويو ولاياتو لکه کندهار، ننګرهار، بلخ

او نورو ولاياتو لرغوني آثار هم پکښې سته.

په کندهار کې د موزيم اساس څلويښت کاله دمخه ايښودل شوی دی او اوس که څه هم خپل اساسي ځای ته

لري خو يوشمېر قيمتي تاريخي آثار لري او عتيقه شيانو ته د عيدګاه په واټ د مرستون په کوټو کې ځای په ځای شوي دي.

د کندهار د موزيم مؤسس د کندهار د پخواني تنظيمه رئيس مرحوم محمد ګل مومند دی او په ۱۳۱۱ کال کې ئې موږ دی

د موزيم اساس کښېښود او په يوه لويه غونډه کې د کندهار ځينو مشرانو او منورو کسانو خپل يوشمېر تاريخي آثار د څه موزيم ته اهدا کړل او موزيم ئې د ښاروالۍ کې منځ ته راغی.

په ۱۳۴۴ کال کې د کندهار یو پښتو الي نایب الحکومه مرحوم عبدالغني گردیزي د موزیم د تنظیم او تقویې

د پاره په زړه پورې اقدام وکړ اساسي تشکیل ئې ورته جوړ، یو تن مامور، یو لیکوونکی، یو تحویلدار او یو تن ئې

د ملازم په حیث ورته وټاکی، بولې ښکلي او تاریخي تابلوگانې ئې چې د هره حیثه اهمیت لري منځ ته راوړې چې تر اوسه پکښې سته.

د کندهار په موزیم کې د هیواد د بېلو بېلو دورو (۷۶۰) ټوټه ارزښتناکه تاریخي آثار سته چې په دې ډول ئې په بېلو بېلو برخو وېشلای شو:

## تابلوگانې:

دا آثار د هغو تاریخي پېښو بیانوونکي دي چې د افغانستان د یو مستر پاچا اعلیحضرت احمدشاه بابا د عصر

څخه نیولې بیا تر اوسه پورې لوېي تاریخي پېښې څرګندوي.

دا تابلوگانې په رنگه ډول ډېرې ښې رسم شوې دي او په هغو کې

د اعلیحضرت احمدشاه بابا د هغه مستر ځوی د دوی اعلیحضرت تیمور شاه، د میوند د تاریخي جگړې تابلوگانې او داسې نورې سته.

زموږ د موزیم د مهمو آثارو څخه یو هم بېلې بېلې مجسمې دي او هغه د ډبرو او گلي مجسمو څخه عبارت دي.

## تاریخي سکې:

د کندهار په موزیم کې چې زموږ د تاریخ د بېلو بېلو دورو نماینده گي کوي یو هم سکې دي.

دا تاریخي آثار په بېلو بېلو شکلونو او زمانو پورې اړه لري چې مهم ئې د گریک، باختر شاهانو، کوشانیانو، غزنویانو، غوریانو او نورو دورو او دوسته ونو دي.

دغه سکې د سرو زرو، سپینو زرو، مسو او نکل څخه جوړې شوي دي.

## لباسونه:

زموږ په موزیم کې د نورو تاریخي آثارو په جمله کې ځینې زاړه او پښتو اني لباسونه هم سته چې په هغو کې د تیمور شاه د عصر د ښځو یو ښکلی کمیس هم شامل دی او د هغه زماني د خیاطي هنر او د لباس طرز ځني څرگندیږي.

د کندهار موزیم د تاریخي آثارو څخه یو هم د مړي یو د اوسپنې تابوت دی چې په هغو کې به ئې د خپل عصر د لویو کسانو مړي جسدونه ایښودل.



دا هم د موزیم یوه تاریخي کتیبه ده

د جنگي سامانونه هم په موزیم کې موجود دي لکه توپکان تومانچې تورې او چړې.

په دغه موزیم کې ځینې ښځمیز د نه سته او د هغو په منځ کې تاریخي آثار او ډول شوي او موزیم ته د ښلو ښکلي انظار جلبوي.

د کندهار په موزیم کې ځینې قلمي کتابونه لکه قلمي قرآن مجید د فردوسي شهنامه او داسې نور پښتو او دري کتابونه هم ساتل شوي دي.

د بده مرغه د موزیم خپله ودانۍ نه لري او اوس د مرستون په یوه لویه کوټه کې د هغه سامانونه ایښودل شوي دي.

د کندهار د غیر منقولو تاریخي آثارو څخه یو هم چهل زینه ده چې د سرپوزې په غره کې یو ډبرین دالان جوړ شوی او څلوېښت د ډبرو زینې ورته کیندل شوي او خلک د تفریح او تاریخي مطالعې د پاره ورخېژي.

محمد اسیم شکوری:

# دکندهار دلاسی صنایعو په لړکی دخولی جوړولو صنعت

په کندهار کی دلاسی صنایعو په جمله کی دخولی جوړولو صنعت دخلکو ډیاته توجه ځانته جلب کړی ده په تیره بیا خارجی سیاحین د هغه سره ډیره علاقه ښیی

هغه خولی چی په لاس جوړیږی تو مونه ئی په لاندی ډول دی:

گلابتونی خولی، دسومی او قنر خولی، دبیجلی خولی دلاچو دخچینه، بلوڅی دخچینه، سپینه خامکی دخچینه دمریو دخچینه ورداسی نوری.

دکندهار د خولی جوړولو او خرڅولو بازار او دغه لاسی صنعت د ډیاتو کلونو راپدی خوا په دغه ولایت کښی رواج پیدا کړی دی او محمد نواز ددغو دخچینو او خولیو داپیوانکی په قول افغانستان کی شته چی داستعمال سره یی ډیاته علاقه لری.

په کندهار کی په دغه لاسی صنعت ډیات کسان بوخت دی او ډیر خلک او ښځی خپلی ورځنی اړتیاوی ددغه لاسی صنعت څخه پوره کوی.

دخولیو او دخچینو بیه دلسو افغانیو څخه بیا تر ۵۰۰ افغانیو او ځینی تر دغه پیسو لا ډیاتـه بیه لری.

دکندهار په ښار کی دد خچینو او خولیو دخرڅلاو ډیر ډیات دوکانونه سته او په هردوکان کښی دخولیو ډیات ډولونه لیدل کیږی دکندهار دلاسی صنایعو څخه دخچینی او خولی نه یوازی داچی په کندهار او دافغانستان په نورو ولایتو کی دخرڅلاو بازار لری بلکه په هند، پاکستان، ایران او نورو خارجی هیوادونو کی هم ښه بازار لری او دافغانستان داتباعو او خارجیانو په واسطه دهیواد څخه دباندی وړل کیږی څکه لیدل شوی دی هغه وخت چی د کندهار ښار ته خارجیان راسی نو دکندهار د ښار څخه خپلو هیواد ته دلاسی صنایعو په لړ کی خودانی دخچینی او خولی د ځانه سره وړی.

---

چهل زینه د ظهیرالدین بابر پ‌ ځای په امر جوړه شوی او ددا لان په شاوخوا د مربوط کلیو نو مونه پکښی ډیر و کی کیندل شوی او بیر دد ادخو نوئی دوه

دوه ډیر پنځه برابان هم جوړ شوی ده چی اوس ئی سرو نه سته.

تر چهل زینی لاندی یوه ډیره کتیبه داشوکا په نامه کشف شوی ده چی تاریخی قدامت ئی یو نیم زرو کالو ته رسیږی او هغه د کندهار دموزیم دغیر منقولو اوادزښتنا کو آثارو څخه گڼل کیږی.



دکندهار دموزیم څخه ډیاتره د پوهنی شاگردان خارجی تاریخی څیړونکی او داسی نور استفاده کوی.

---

# عالی افکار

با معنی او پوه سړی خپل دمقام او مرتبی په مناسب خپلی پښی غزوی او هیڅکله تر خپلی کمبلی پښی نه اوږدوی.

(کنفوسیوس)

که غواړی چی بی نهایت د کلیاتـو وپیژندلو ته ورسیږی په جزیاتو کی بی نهایت دقت کوه.

(گوتـه)

دبی کاره سړی ژوند تدریجی مرګ دی.

(گویته)

بیکاری داسی شی ده لکه ژنگ چی ژر تور خوری.

(فرانکلن)

د خارجي مناېعو څخه :

ژباړونکی عبدالولي څپلیار

# پوهېږئ چې ستاسې کوچنیان د څه شي څخه بېرېږي؟

ګلالۍ ــ زه د غله څخه بېرېږم ځکه چې له کومه ځایه بوځه د غلو کور ته لوېږي .

پروین ــ زه هر وخت چې د لامبو د پاره د کور څخه د باندې ځم نو زما په زړه ولوېږي دکې ډېره احساسېږي او کله چې وغواړم چې څه ولیکم هم بېرېږم او کله چې د شپې د خپلو کارونو ترسره کېدلو د وخته د خوب کوټې ته ننوځم د څراغ تروژلو د وخته بیا هم بېرېږم او سمدستي خپل ځان په بستن کې پټوم .

عمر ــ هر وخت چې د مور او پلار نه لیرې سم ډېره احساسوم

زرغونه ــ تل بېرېږم که مبادا بیده شوم نو بد خوب به ووینم ځکه یوه شپه چې زما مور او پلار د خپلوانو کره تللي وو نو خوب مې لیدی چې څو څو ژمریان په خوب کې را ته راشي او ځنګه مې خپه کي .

دا د بېرې ځینې علامې دي چې زیاتره کوچنیان په دې ناوړه آفت اخته دي او څرنګه چې اوس هم دا ډول بېره په زیاتو کورنیو کې لیدل کېږي خو سره د هغه هم زیاتره میندې او پلرونه ودې ټکي ته نه دي متوجه سوي .

یوه فرانسوي مجله چې د مېرمن په نامه سره په هغه هیواد کې خپرېږي اوس د دې موضوع په باره کې ځینو تجربو او پلټنو ته لاس اچولی دی په دې معنی چې ثابت کړي چې کوچنیان چې د هغو عمر د لسو کالو په شاوخوا کې اټکل سوی دی بیا هم د هغوی سره بېره په زیاته اندازه ملګرې وي او هغه بې اساسه او بې اهمیته شیان لکه په تیاره شپه کې یوازې پاتې کېدل، نا پېژندونه، د حیوانا تو څخه بېرېدل او همدا رنګه د هغو په زړونو کې د غلو او داسې نورو بې ځایه شیانو کیسو ته ځای ورکول، د هغوی د بېرې موجب ګرځي .

په هر صورت دا خو د هرې کورنۍ خصوصاً د میندو او پلرو او یوه مهمه وظیفه ده چې خپل اولادونه د بېرې د هغې اصلي منشأ څخه چې د دوی په زړونو کې په بشپړه توګه ځای نیسي او د دوی د راتلونکي ژوند د هغو بې اساسه شیانو په وسیله تهدید او د زیاتو خطرونو سره مخامخ کېږي، باید ژر تر ژره ولك او برعکس د هغوی په زړونو کې داسې د زړه ورتیا حس پیدا کړي . سی چې د هغوی د راتلونکي ژوند په نیکمرغي او خوشحالي سره بدل کړي .

لاندې شرحې چې اوس به ئې محترم لوستونکي په څېر او دقت سره ولولي د بېرې تجزیه او تحلیل او هم به د بېرې عمده علتونه چې تاسو د هغوی د له منځه وړلو د پاره تشویقوي وويني .

د مخه تر هر څه باید ودې ټکي ته متوجه واوسو چې په عمومي ډول سره بېره په دوه ډوله ده یو ډول بېره چې ناڅاپه د یوه چا له خوا صورت مومي او ژر د منځه ځي

دوهم قسم بېره بیا هغه ده چې د تل د پاره د انسان په وجود کې په بشپړه توګه ځای نیسي . په پورتني مثال کې د زرغونې بېره هم د غه ډول بېره ده یو د هغو انساني وظایفو څخه چې میندې او پلرونه ئې د خپل اولاد په تربیه او روزنه کې لري دا ده چې باید ډارونکي او ویرجن موضوعاتو ته د دوی په مغزو کې ځای ور نه کړي که د کوچني په مغزو کې د ډېرونکي شي ځای ونیسي نو د دوښته بیا یو ډول سخت او دردناک حالات په هغه کې منځ ته راولي او همدا رنګه کله کله داسې ویرجن حالات د میندو او پلرو له خوا د اولاد په مقابل کې اجرا کېږي چې ځینې وختونه کوچنیان د خپل کور څخه لا کرکه کوي او د کور څخه د باندې ګرځي .

وظیفه پېژندونکې میندې او پلرونه چې د خپلو اولادو راتلونکي ژوند ته چمتو وي باید داسې لاري د هغو د ژوندانه د ښېګڼې د پاره غوره او خوښې کړي چې هم خپلو ځانو ته او هم او ټولنې ته نیکمرغي په برخه کړي.

همدارنګه میندې او پلرونه وظیفه لري چې خپل اولاد د ژوندانه سره د لومړي ځل اشنايي په ترڅ کې هغوی سمدستي د ژوندانه د علم و مدرسې (ښوونځي) ته رهنمايي کړي او هم د ځینو نورو لارو سره چې د ژوندانه د پاره ډېر مهم او ګټور تماميږي اشنا کړه شي او هم باید هغوی ته متوجه او سو هر شي چې د دوی

د وجود سره مستقیما ارتباط پیدا کوي توجه ولرو او خپله دا موضوع باعث کیږي چې د کوچنیانو او میندو په منځ کې د تفاهم او د متقابل اعتماد حس په وجود راځي او خرد به خوده کوچني د بیرې څخه خلاصون مومي

همدارنګه یو بل شي چې د کوچنیانو د بیرې او وحشت موجب ګرځي هغه دادی که یوه ورځ کوچنی په کور کې یوازې پاته شي نو ښائي د بیرې احساس وکړي د یوې کورنۍ غړي چې د کور څخه د باندې په خپلو ورځینو کارو نو اخته وي او خپل کوچنیان تر شا پرېږدي نو سمدستي د هغو کوچنیان په هغو پورې تړلي او باوړ اته سرګردانه کوي او دا هم یو ډول جدي او اساسي

بیره ده چې په کورنۍ کې د هغو د یوازي پرېښودلو څخه منځ ته راځي نو د هرې کورنۍ وغیرو ته دا ښائي چې د دې کار څخه بې خبره پاتې نه شي ځکه چې د هغو سره دا ډول چال چلند ډېره ناوړه ګڼل کیږي نو د دې د پاره باید لومړی ځل تر وسه وسه هڅه وسي چې کوچنی هیڅکله یوازې په کور کې پرې نه ښودل شي.

او که چیرته لومړی کار ډېر مهم او ضروري وي باید چې هغوی په ځینو دلایلو سره چې هغوی ښه وي وپوهیږي چې دا کار ضروري دی او هغه قانع کړي چې هیڅکله دې یوازې نه پرېږدو بلکه سمدستي به کور ته راشو. خو بدبختانه اوس هم په ډېرو کورنیو کې ځینې میندې او پلرونه خپلو اولادونو ته داسې ترټې چې ورته وائي که چیرې ته چپ کېږې او خپل ځان ته سموې او سمدستي خپل ځان در څخه خلاصوم او کله چې کوچنی بیده بیږي او ورته وائي که نه بیدېږې او د کوچ پا پیشو ته دې اچوم.

ډېر ځیر و اوسې ځکه چې د کوچنیانو دنیا ډېره کوچنۍ ده، میندې او پلرونه د هغوی په مقابل کې دژ انو

وجایبو او وظیفو په اجرا مؤظف کړه سوي دي. کوچنی که څه هم یو عجب موجود دی چې لوی خدای (ج) ئې دنیا ته راولي او وروسته بیا هغه مقدرات د هغوی مشران (میندې او پلرونه) د هغوی په ښه تربیه او روزنه سره مکلفوي.

کوچنی چې د کوچنیوالي په مرحله کې وي دی لومړی خپله زده کړه د کورنۍ د مشرانو څخه کوي او هر څه چې مشران کوي هغه ټول ده په مغزو کې ځای نیسي.

نو ځکه په دا وي چې خپل کوچنیان هیڅکله ونه بیروو او په هر ډول چې وي باید د هغو په مقابل کې د بیرې او تهدید اسباب ژر تر ژره ورک او د منځه یوسو همدارنګه یو بل ډول بیره چې کوچنیان ورسره اخته کیږي هغه هم د حیواناتو نه بیره او وحشت دی او دا هم طبیعي ده چې کله کوچنی د یوه حیوان څخه وبیریدل او وروسته د هر شي سره د مخامخ کیدو په وخت کې حتما بیربږي په عمومي ډول سره ځینې نورې بیرې چې په کوچنیانو کې مختلف شکلونه غوره کوي سته او کله کله کوچنیان د هغوی سره د مخامخ کیدو په وخت کې حتماً په خپل ځان کې بیره احساسوي.

همدارنګه کله چې کوچنی د شپې بیده سي نو سمدستي د خوب په وخت کې هغه ټول حالات چې دی ورسره مخامخ سوي دي ورته متصور کیږي د مثال په توګه یو کوچنی چې یوه ډېر بیریدونکي فلم ته کتلی وي یا یوه بیریدونکې کیسه ئې د بل چا له خوا اوریدلي وي نو دا ټول شیان د ده د بیرې په راپیدا کولو کې یو ستر او مهم رول لوبوي او د ده څخه هغه خوب چې ده ته لازم او ضروري دی وړي.

همدارنګه ځینې کوچنیان په توره شپه کې زیات بیربږي او که چیرې په کوټه کښې څراغ مړ کې سي نو سمدستي د دوی څخه خپل خوب ځي که چیرې ستاسې کوچنیان د داسې بیرې سره حساس وي او پرته د لګیدلي څراغ د دوی خوب نه شي ترسره کیدای باید چې د دوی د پاره څراغ لګیدلی پرېښودل شي او باید مطابق د دوی د غوښتني عمل وشي د څه اقدام چې تاسو ئې د خپلو کوچنیانو سره کوئ د دوی سره د نازو لقوب او تسلیمدو نه ده بلکه په همدې توګه کولای شی خپل کوچنیان د بیرې څخه خوندي وساتی تر څو د دوی ژوند د پریشانی او ځینو نورو مهالکو او خطرناکو ناروغیو څخه خوندي پاتې شي او آینده و خپلې کورنۍ په تېره بیا و خپلې ټولنې ته د خدمت کولو مصدر و ګرځي.

ژباړونکی: احمدی

# وروستی اپولو

> د امریکا د متحده وو ایالاتو د فضايي پروګرام د شپږمه او وروستی اپولو د ۱۹۷۲ کال د ډېسمبر د میاشتې په (۸) نېټه
>
> د کیپ کنیډي څخه فضا ته وتوغول شو او بیا یې د همدې میاشتې په (۱۹) نېټه بېرته د ځمکې لور ته راستنه شي.

دا یې د مجلې خبریال د دغه کند اړش خبرورکړی دی:

هر کله چې (۳۵۰۰) تنو سېل کوونکو د کیپ کنیډي د فضايي مرکز څخه د (۱۷) اپولو د حرکت جریان ته کتل، د فلور ډا په آسمان کې هغه وخت چې د لمر طلايي

او زرینې وړانګې د ساترون په سپین رنګه ډاکټ باندې ځلېدې، سپوږمۍ هم په کمرنګه ډول سره لیدل کېده. دغه تابلو او عجیبه طرح د بشر په لاس جوړه شوې وه چې د بریالیتوب زیری یې ورکاوه. خو دغه بري یې بیله کوم زحمت څخه لاس ته نه دی راغلی.

هر کله خبره ده چې دغه بېړۍ یې وروستۍ بېړۍ ده چې سپوږمۍ ته به سفر وکړي. او همدې بېړۍ په

اسټولوسره به سپوږمۍ ته د فضايي پروګرام د کار وروستۍ مرحله وي. د اپولو د سفر په باب د همدې

داپور څخه دا هم معلومېږي چې شوروي اتحاد به

وروسته د فضايي هیات په استولو سره اقدام وکړي په داسې حال کې چې د امریکا متحده ایالات په

اوسني وخت کې د فضايي بېړۍ د استولو څخه ډه کوي د دې حقیقت پوهېدل د لیدونکو په تېره بیا د فضايي عملي

او کار کوونکو او د هغو د کورنیو د خواشینۍ سبب ګرځېدلی دی.

ددغې فضايي بېړۍ سفر موږ ته داپولو د پروګرام

دختمېدو خبر راکوي.

داپولو د الوتونو ماندان «جین سرنان» وویل:

«په دې مرحله کې داسې هیله کېږي چې د سپوږمۍ څخه بېرته د ځمکې ته د راتګ په وخت کې به داسې پیغام

دهانه سره ولرو چې دغه پرواز بوازې او بوازې د لایتناهي فضا په باب د معلوماتو د په لاس ته راوړلو د شروع

مرحله وي.»

د هغو ګامو په فاصله پورې چې دغه چارې په غاړه لري دخپل اتاق دروازه یې وتړله او درا کتې

ړاو ر وچناب یې تر کتنې لاندې ونیول د کنیډي د فضايي بېړۍ د مرکز رهنمایي کوونکي کورټ د بیوس

هر ګندو کړه «د تاثر وړ خبره ده».

د بیوس چې ۶۳ کلن دی د مخه د مرستې په ډول یې د ورنرفان بران سره په ۱۹۳۰ کال کې داوظیفه لرل

هغو د بېړۍ راکټونه ولګول چې په هغه وخت کې د سپوږمۍ په مخ پلې کېدل یوخو باوخیال ورته داوظیفه

اجرا کوله او د بېړۍ یې او ډبې لګاوه.

اوس د بیوس د بېړۍ د توغولو کار په غاړه لري

او د امریکا د متحده وو ایالاتو د فضايي بېړۍ د سرنشینانو

د ډلې څخه دی چې ده څخه په دغه باب یوه کوچنۍ سهوه هم نه ده شوې. ده د یوه عسکري جنرال په ادعا باندې

چې په ۱۹٤۷ کال کې ده ته ویلي وه «هیڅ دا کېږي نه شي کولای په یوه ساعت کې تر (۷۰۰) میلو زیات

سرعت ولري »وخندل او وې ویل: چې اپولو اوس په یوه ساعت (۲۵) زره میله سرعت لري.

(هر کله چې د ۱۷ اپولو جوړ شت نه کوم مانه دا فکر د اپیدا کېږي چې باید په ډېر حیرت سره

وواېم چې ډېره عالي ده. موږ د پېش قدمانو څخه ...

او په دغه لار . کې موږ یې زحمت گاللی دی او زما د رضائیت سبب دا دی چې زه دلته کار کوم. او زما افتخار په دې کې خلاصه کېږي چې د سپوږمۍ په مخ د پلې کېدو پیشنهاد په ۱۹۶۶ کال زما د خوا وسو او بېله شك او تردید څخه زما د ژوند دغه مرحله د زیاتې خوښۍ او خوشحالۍ څخه ډکه ده.)

د پیوس د یوه گړي د پاره د (۱۷) اپولو د فضايي بېړۍ د دوستۍ برخې ته چې د راکټ (۵) په نامه یادېږي د کنټرول او زیاته یې کړه:

(دغه پنځم ساترن هم د کار و دوستۍ مرحله ده) فکر نه کوم چې په اوس وخت کې دې د (۵) ساترن څخه هم زیات قوي راکټ جوړ کړو دغه راکټ کولای شي چې په ډېره اسانۍ سره (۲۰۰) زره پونډه وزن تر مداره پورې د ځانه سره یوسي. لوکه وغواړو چې تر دغه اندازې زیات وزن د راکټ په واسطه یووړل شي نو دا به اقتصادي وي چې د یوه راکټ په ځای څو راکټونه جوړ کړو.)

د پیوس د فضايي پروگرام آینده او گذشته او د قطب په کشفېدو کې پر ځولځول هیجانات او د قطبي یخو د مطالعو امکان مقایسه کړ او وي ویل: (موږ په اوسني زمانه کې اقتصادي موضوع ته متوجه یو خو دغه سفر داسې معلومېږي چې دا کار یوازې او یوازې یو نظاهري جنبه لري خو اوس توجه د چې د استفادو لوري ته زیاته متوجه ده. په دې معنی چې فضا باید د بشر د پاره د امکان تر حده پورې د استفادې وړ وگرځي.)

په راتلونکي کال کې د «سکای لاب» د پروگرام طرح او د ریکار کېدل په نظر کې دي چې فضا نوردان د مځکې د کرې په مدار کې تر ۵۶ ورځو زیات وساتي او دغه پروگرام په ۱۹۷٤ کال کې پای ته رسېږي.

تر ۱۹۷٤ کال وروسته بین المللي فضايي پروگرام طرح کېږي، دغه پروگرام د امریکا د متحده ایالاتو او شوروي اتحاد د مشرانو د پخواني تړون پر اساس اجرا کېږي. په دغه طرح کې به د دواړو خواوو د کړښو توحید دادي چې امریکايي او روسي فضا نوردان باید د مځکې په مدار کې یو ځای شي او تر ۱۹۷۸ کال پورې یو بل فضايي پروگرام په نظر کې نه دی نیول شوی خو په ۱۹۷۸ کال کې یو فضايي پروگرام شروع او په کار اچول کېږي.

د (۱۷) اپولو د سرنشینانو څخه یو تن چې (ډاکټر هاریسن شمیت) نومېږي د همدې موضوع رعایت په ځای و باله او وي ویل: په رښتیا سره په ټوله نړۍ کې د فضايي مطالعو په باب یو خاص موقعیت لرم.

همدا راز د اپولو لوډ ژوندو تنو کاریگرانو د ډلې څخه یو تن د اپولو د الوتلو په باب وویل: (د شپږو ساعتو په ظرف کې کارگرانو وکولای شوای چې (۱۷) اپولو د الوتلو د پاره ځای پر ځای کړي. سرنان او شمیت د ۳ ورځو د پاره د سپوږمۍ پر مخ مطالعې وکړې په همدې وخت کې

د اپولو بل کار کوونکی رونالد یوانس د سپوږمۍ په مدار کې د ځان د پساره ځای نیولی و. او د سپوږمۍ څخه د اپولو بېرته راتگ نیټه د ډسمبر د میاشتې ۱۹ نیټه ټاکل شوې ده.

د دوستۍ معلوماتو له مخې د (۱۷) اپولو بېړۍ تر ۸۶ ساعته سفر وروسته د قوس په شلمه نیټه د سپوږمۍ مدار ته ورسیده او ټاکل شوې ده د ذکر شوي اپولو د سپوږمۍ پر مخ کښېنستو، لکه بېړۍ یې په همدغه نیټه د سپوږمۍ پر مخ کښېني او ارشمیت او سرنان د سپوږمۍ پر مخ کښېنستو لکۍ بېړۍ قوماندانان به د دې ورځې د سپوږمۍ پر مخ وگرځي او د سپوږمۍ د مخ مربوط خبرونه به مځکې ته مخابره کړي.

د سپوږمۍ پر شاوخوا لومړني انساني پرواز د ۱۹۶۸ کال د ډسمبر په میاشت کې د اتمې اپولو په ذریعه صورت وموند او د سپوږمۍ پر مخ لومړني انسان د (۱۱) اپولو په واسطه د ۱۹۶۹ کال د جولای په میاشت کې پلی شو. تر هغه وروسته ټوله اپولوگانې د سپوږمۍ پر مخ کښېنستلي دي پرته د (۱۳) اپولو څخه چې د سپوږمۍ پر شا و خوا وڅرخېدل او د سختو خیمو نواقصو له کبله د خپل ماموریت څخه بېرته راوگرځېده.

(د لومړی مخ پاته)

# زموږ نوی حکومت...

موږ باور لرو چې نوی حکومت به د سالم تفکر، سمې ادارې، قانوني اجراآتو او دیموکراتیک روش دلاری هغه وعدې پرځای کړي چې د خپل توان او کوشش په چوکاټ کښې ورته مقدوري وي او د هیواد د اسې سټر تحول دپاره به زمینه مساعده کړي چې د اساسي قانون، اسلامي او دخلکو د ذهني شرایطو او دعصر د ایجاباتو سره سم وي نو د نوی سالمې لارې څخه به لې چارې پرمخ بیول او د خپلو شرایطو په چوکاټ کې مخکې تګ اوسرو کامیابي به ترلاسه کړي.

موږ د خپل نوی حکومت د کېنلارې ټول اساسي ټکي تائیدوو او هیله کوو چې د هیواد وطندوستان او ځوانان چې له دهیواد د اعتلا او ستر انکشاف په لار کښې د اوی حکومت سره خپله همکاري ونه سپموي څو چې په دې ډول د حکومت او خلکو د ګډې فداکارۍ او کوشش دلارې زموږ هیواد د عصري ژوند د

ټولو ښېګڼو او وسایلو څخه ګټه واخلي او له هیواد څخه موږ ټولې مادي او معنوي ایمګۍ تیاوی لیرې او عمومي پریشاني ایسته شي. (غلام محی الدین ایوبی)

# مدنیت او ذهنیت

ان د هیښو خلکو د فکر و نو په قرار چې کله مدنیت یعنې صحیح کوډونه، جادې ایادی او نور د انسان د استراحت شیان برابر شي هغه وخت ترقي او سعادت حاصل ایدای شي او د اوسني ژوند ترسخت پړاوونو به هوسائي او آرامي څه تیریدای شي اما باید هم باید پوه شو چې د هغه مدنیت او د مدنیت وسایل څوک په وجود راولي او څرنګه استفاده ځني کیږي؟

طبیعي مدنیت او د ښادوالي مزایاوی مهذب، صحیح، منور او ښه فکر خاوندان په وجود راوستلای شي خو به هیڅ ځای کې داسې نه پیښه چې مدنیت دې د هر حیثه مجهز او د انساني ژوند ټرټولو احتیاجاتو او ضروریاتو دې و تلي وي اما برخلاف د هغه مدنیت یاښادوال او سیدونکي دي چې په ابتدائي حالت

پاتې وي او د خپل ژوند احتیاجات دې په ابتدائي او ایه لو ازمو سر ته و رسوي ذهنیت او فکر دې نه وي اصلاح شوی او د خپل ژوند سمې او کړې لیاری ئې دی نه وي معلومې که احیاناً هم داسې پیښه وي داسې مدنیت پاید ار نشي پاته کیدلای او حتمي بیرته د ارتجاعي او ابتدائي حالت پر خوا ژوند کوي ځکه او سیدونکي ئې د خپل فکر په طرز او معشري عمومي ذهنیت په سابقه او انشار بیرته د ابتدائي حالت په رجعت مجبور کوي او څرنګه چې فکر دی د هغه اجتماعیت او مدنیت په وجود راولي او رېدي ډول ذهنیت او مدنیت تطابق کوي.

# عالی افکار

محبت ستر ګې ړندوی او غوږونه کاڼه کوی.

لې موني شکنجه د عشق ډوډی ده. (مودېس مټرلینګک)

هغه وخت چې دوه عاشقان یو او بل ته د سیږی او هغه وخت چې یو د بله څخه جلا کیږی د ژوند د دوو شیرینو ترینو لحظو څخه شمیرل کیږي. (ولټر)

هغه څوک چې عشق دلاسه ور کې په نړۍ کې لو جانبازۍ کیږ یده. (شوپنهاور)

عشق یو پیرې دی چې هیڅ ندی لیدلی مګر محبت ئې رسوا کوی. (تولستوی)

په ورو ستهپاتې ممالکو کښې ترټولو د مخه د ذهنیت اصلاح په کار ده او کله چې ذهنیت اصلاح شو او صحیح انسانان ئې د نتیجې څخه په وجود راغله طبیعي صحیح انسانان او د سالم فکر خاوندان د خپل ځان او جهان د جوړولو دپاره د صحیح ژوند پروګرامونه سنجولای شي مدنیتونه او ښادونه جوړوی د علم ؤ عرفان په لیار کښې موفقیتونه حاصلوی او څرنګه چې د انساني اوږ تیاد پاره کوم د ترقي معیار لازم وی هغه ته رسیږی.



د کندهار والی ښاغلی
سلطان‌عزیز زکریا د
کندهار دهوائی میدان
په ترمینل کی بیت‌الله
شریف ته د تلو په‌وخت کی
یو تن حاجی "ته" مخه
ښه وایی



د احمدشاه‌بابا
د لیسی
نوی ودانی